


د کتاب ځانګړني :

❖ دکتاب نوم ::افغانستان دسیاست په در شل کښي

❖ ليکوال :: نوراحمد ((قران مل))

❖ کمپوزر :: ((قران مل))

❖ دچاپ لړ ::۱۴

❖ دچاپ کال :: ۱۳۹۴ لمريز

❖ خپرندوی :: غریبك کتابتون کندهار



❖ اړیکه ::noorahmad_kakar@yahoo.com

# اهدا

هغــو درنــو تــه ،چــي دخپلوســپېڅلو وینــواو ارمانونودقربــانۍ پایلــه یــې پــه ژوندنــه کړه تر لاسه.

په درنښت اهداکومه

لیکوال

دشهید اسلام الدین ((کفایت الله)) دشهادت د۳۵شـم تلین په مناسبت



# ځوانان مو دحساب دي

افغانستان دافغانانو ګډ کور دی ، ددوی تلولې مینه ده چې کله یې احساسات داهدافو لپاره وکارېږي هیواد ته نوم ، ویاړ ، عظمت او فرهنګي غنا ور برخه کړي او کله یې هم احساسات په شعوري یا غیر شعوري ډول دپردیو اهدافو ښکار سي ،د وسیلو په توګه وکارول سي ،چې په پایله کي په هیواد کي ناورین ، فقر ، شاته تلګ د ملتونو په سیالۍ کي په حکومت کولو پاته او په جګړه کي پیاوړي څرګند سي .

دګربت ((یما)) له دورې تر دې دمه مو دهیواد قلمرو له بیلابیلو فرهنګي ، عقیدتي ملي ، حماسي پدیدو تر جغ وتلی ،چې په موجوده عصر کي یې اوسنۍ ارضي تمامیت را په برخه دی .

دهیواد ددغو پدیدو په اړوند ګوته په شمار نه ، بلکه ډېرو باندنیو او کورنیو مؤرخینو دخپل تحقیق او قضاوت پر بنسټ ددې هیواد اړوند مقالې ،کتابونه او .... لیکلي دي .

یو هم له دغو لیکوالانو څخه زموږ د((کندهار پوهنتون)) دعلمي او اکاډمیک انګړ دسږ کال

فارغېـــدونکي محصـــل نوراحمـــد قـــران مـــل دی ،چـــي دافغانســتان اړونـد پخپـل دې اثـر کـي يـې هغـه څـه را نغـاړلي چي ديوه تاريخي ماخذ په توګه ټولني ته وړاندي دي .

کـه لـه يـوې خـوا دنومـوړي سـن اوسـال او لـه بلـه اړخـه دکتـاب پـانګي تـه ګـورو نـو لوسـتونکي دې تـه اړباسـي چـي دنومـوړي دليکنـي اړونـد سـوالونه پيـدا ، ولـي دهغـه تحقيـق او پلټنـي ، پـه صـحنه کـي دځينـو دخيلـو کسـانو سـره ليدنـه ،کتنـه ، تحقيـق او پلټنـه او پـه بـل اړخ کـي لـه وړکتـوب څخـه د خپـل هيـواد سـره لېـونۍ مينـي هغـه برلاسـی کـړی ،چـي دا کتـاب زموږ مخي ته کېښېږدي .

نومـوړي ديـوه افغـان مـورخ پـه توګـه خپـل رسـالت پـه داسـي توګـه سـرته رسـولی، چـي دکتـاب پـه مـتن کـي يـې پـه ځينـو برخـو کـي د narrationپـه شـکل خپلـي ليکنـي تـه کيسـه يـزه بڼـه ورکـړې ، ورسـره جوخـت يـې دمتقـابلو چـپـي او راسـتي اړخونـوExpository تقـابلي جـاج پـه بـې پـرې ډول کـړی او کلـه ناکلـه يـې بيـا لوسـتونکو تـه پـه فکـري ډول ديـوه انځـور ورکولـو پـه دود Descriptive شـکل ليکنـه کـړې ده، چـي پـه دې کـي نومـوړي خپلـي ليکنـي تـه ښـل خپـل رنـګ او خونـد ورکړی دی .

پـه همـدې اسـاس دکنـدهار پوهنتـون رهبـری پـلاوی دنومـوړي دې کتـاب تـه دخپرېـدو جـواز ورکـوي . پـه دې اميـد

چــي نومــوړي دهيــواد ســره دخپلــي مينــي پــر اســاس نــور هــم خوځنــده او خپلــي مفكــورې او ملــي نوامســو تــه د يــوه وفــادار افغان او مسلمان په توګه وفا دار وي

په درنښت

ډاکټر حضرت مير ((توتاخېل))

دکندهار پوهنتون ريس

# سريزه

د سياست لپاره تاريخ د خامو موادو حيثيت لري !

دا چې د هر علم، هر فن او ټولنې لپاره چې تاريخ ته مراجعه او په همغه برخه کې ژور فکر وکړي چې ياده موضوع څنګه را برسېره ، يا د دې فن بنسټ چېرې ، چا او همدارنګه په کومو امکاناتو ايښي او يا هم په دې ټولنه کې د اوسني پرمختګ او يا دا چې د ننني غميزې او ستونزو لامل څه شي، څوک او ولې وو پيژندل کېږي.

په تيره بيا بشري ټولنه پرته له تاريخ څخه چې د خپلو مشرانو که هغه په عادي برخو کې وي او که په سياسي برخه کې، د واک په ګدۍ ناست وي او که د يو چا رسول يې تر واکه پورې کړي وي، و نه لولي ژور فکر پرې و نه کړي، د هغوی سر ښندنو باندې ويارې او په تېروتنو يې تر هغې چې په سرښندنو يې يوازې په شفاهي او يا هم د کاغذ پر مخ ويارې کوي څو وارې ژور او مکرر او هر اړخېزه فکر و ونه کړي چې دغه تېروتنې زما مشر ولې کړې دي، تجربه يې کمه وه اوکه تر حده زيات باور، د دې تېروتنې تر شا چې موږ يې نن هم د تاوان حساب لنډوو کورني لاس ؤ که باندني او نوري هر اړخېزه پلټنې اوسپړنې و نه کړي، نه دا چې پرتو ستونزو ته به مو د حل يوه مناسبه لاره نه وي پيدا کړي ،بلکې نوره به مو هم پېچلې کړې وي او په همدې شکل به مو د هغو

ولسونو په خیر چې خپلو راتلونکو نسلونو ته د ستونزو د هواري پر ځای د ستونزو یو کانکور (تجمع) پري ایښي وي چې د تیارو ډک پرون پسي د ګرځېدو له اسیته د روښانه سبا چې د هر وګړي طبعي حق دي ورک کړي وي او د ټولنې د تاریخ د نا دودو له وجي به مو د یو ړانده په څیر د نورو په اوږه لاس ایښي وي او د یو نا معلوم راتلونکي په لور چې ځای پر ځای په لوړو او ژورو کي تېندکونه وهي او تش د ژوندیو په څیر به د ژوندیو نسلونو د ژوند پېښي کوي نه دا چې آرام ، خپلواک او هوسا ژوند ، څرنګه چې د محترم ورور قرانمل دغه ( افغانستان دسیاست په درشل کښي) لیکنه او راټولونه د وران خو پر موږ ډېر ګران هیواد افغانستان د ۱۳۵۲ل م کال د داود خان له سپینې کودتا را پیل او دپروفیسور صبغت الله ((مجددي)) تر واکمنۍ پوري رسېږي. ټولو افغانانو ته مهمه ده ځکه په همدغه یعنې د کلونو د کمېت له اړخه لنډه خو په سمه ایزه او نړیواله کچه د پرمختګونو په کیفیت سره نور هم د دي دوري اهمیت جوتېږي ، یعني په سمه کي په دغه موده کي مونږ سره په خوا کي په زور سره ګاوندي واقع شوي پاکستان د اتوم بم جوړ کړ ،د افغانانو د جهاد له برکته د شوروي اتحاد جمهوریتونه ټوټه ټوټه شول او (۱۵) نور جمهوریتونه وزیږیدل. المانونه یو شول او په نړیواله کچه نړۍ د سور

ښـامار څخـه خلاصـه شـوه. سوسـیالیزم ړنـګ او امیریـالیزم بـري و مونـد. سـړه جګـړه پـه ټولـو لویـو وچـو کـي پـاي تـه ورسـېده. د ملګـرو ملتونـو د سـازمانونو د غړیـو هیوادونـو شـمېر زیـات شـو. پـه سـمه ایـزه او نړیوالـه کچـه د هیوادونـو تـرمنځ د هـر اړخېـزه اړیکـو نـوي ور پرانیسـتل شـو. پـه تـاریخي لحـاظ نـو د داود خـان د کودتـا لـه وجـې شـاهي نظـام ړنـګ، لـومړني ولسـواکي نظـام جـوړ چـې ټولـو هیوادوالـو تـه د منلـو وړ وو. کلـه چـې داود خـان سـپینه کودتـا کـوي کـومې سـهوي کـوي، کومـو سـتونزو سـره مـخ دي، کـومي سـتونزې وې چـې شـهید داود خـان حس نـه کـړي تـر څـو داسې نظـام کـوم چـې ټـول ملـت تـه د منلـو وړ و بیـا هـم پـه سـره کودتـا لـه منځـه ځـي چـې ورور قرانمـل ورتـه پـه ډېـره ځیرکتیـا او د اسـنادو پـه رڼـا کـې او همدارنګـه ځینـو داسـې آنـدونو لـه زاویـې چـې لوسـتونکو تـه نـور د سـپړني او څېړنـې علمـي ور پرانیـزي لکـه: د کتـاب پـه سـر پـاڼو کـې، د پاکسـتان هیـواد مشـر بوټـو اړیکـې چـې خپلـه هـم سیوسیالسـت پلـوي و لـه روس سـره د اړیکـو شـتون د داود خـان د نظـام لپـاره د خنـډونو د ایجـاد پـه برخـه کـې او همدارنګـه د داود خـان مخالفـت لـه روس سـره پـه داسې حـال کـې چـې داود خـان نـه هـم ولـس تـه مـخ اړوي او نـه هـم نـورو (اسلامي نهضـت ګونـد او ډلـو او نـورو ګونـدو تـه) او یـا هـم هغـه تجربـې تـه چـې د لـومړي نړیـوال جنـګ پـر وخـت امیـر حبیـب الله

خان د ملت مشرانو او مخورو مشورو ته چې بې طرفه پاتې شي يو ټولپوښتني يا نظر پوښتني ته ! هغه څه دي چې ستاسې په لاس کي ليکنې ته يوه ځانګړنه ورکوي

د افغاني ټولنې د نبض او شعور پلټل چې د يو شاهي نظام څخه ولسواکي نظام ته اماده دي که څنګه؟ په کلتوري برخه کي د بدلون لپاره لار پرانيستل بد عواقب درلودل او که نه؟ او همدارنګه د دوه داسې (غازي امير امان الله خان او شهيد سردار محمد داود خان) چې په افغاني تاريخ کي د مترقي ژوند اتلان، په داخلي کچه پياوړي او غښتلي او همدارنګه په نړيواله کچه منلي شخصيتونه وو. ليکوال دا موضوع هم ډېره په هوښياري سره د مختلفو ابعادو څخه را سپړلي او څېړلې چې ولي ناکام او نظامونه يې رنګ شول او همدا رنګه يي د دوي د تېروتنو د ارزوني يادونه کړي.

آيا افغاني ټولنه د ولسواکي نظام په پرتله کمونستي نظام سره د ځان عيارولو لپاره چمتو وه که څنګه؟ په دي ليکنه کي په پوره مهارت او ساده ژبه هر اړخيزه يادونه شوي چې لوستونکي به پري د افغانستان د لنډ خو خورا اهم سياسي تاريخ تنده خړوبه کړي. همدارنګه د داود خان په وړاندي په هيواد کي د ولسواکي تقريباً دوه کالو تيريدو وروسته مسلح پاڅونونه او علتونه ذکر شوي

چې د افغانستان په نږدې تېر سياسي تاريخ کې پرې سترګې نه شو پټولای.

د غوايي د کودتا په باب چې دا يو تصادف و او که پلان شوې طرحه په دې ليکنه کې د هغو اشخاصو چې په کودتا کې سهيم و يادونه په مختلفو نظرونو سره شوې، د مير اکبر خيبر مړينه چې ځينې خلک يې د غوايي کودتا باعث بولي او همدارنګه د ليکوال (قرانمل صاحب)خپله د احمدشاه بابا د ليسې د مدير سره بحث د داود خان د شخصيت په باب موضوع د معلوماتو له نګاه لاپسې غني کړې ده.

د کمونستې ګوند ټول سياسي او ټولنيز غړي په داسې حال کې ونيول شول چې مهم غړي(حفيظ الله امين) خلاص دي داسې تېروتنه وه چې د ثور(غوايي) کودتا يې بريالي کړه او تاوان يې تر ننه ملت ګالي ياده شوي، چې په دې ځای کې هغه د دري ژبې متل چې (آزموده را ازمودن خطا است) راوړو يعنې په سياسي موضوع کې داسې سياسي بصيرت لرل د سياست کولو لپاره ډېر اړين دي.په هغو خلکو او پوځ باور چې د داود خان سره يې د ظاهر شاه په وړاندې همکاري وکړه ثابت ساتل او بيا يې مشران هغه ډېر ټيټ رتبه افسران کېدل چې د سپيني کودتا پروخت يې

لــه لــه داود خــان ســره همکــاري کړيــوه او د ده (داود خــان) پــه وړاندي يې عکس العمل د ده په مرګ تمام شو.

هــر بــدلون او اوښــتون بايــد چــې د ســمون او رغــون پــه خــاطر وي د غــوايي ۷ کودتــا چــې افغانســتان پــه تــاريخ کــي يــې نــوي بــاب پرانيســت او داســې فرمانونــه صــادر شــول چــې ښــکاره د ملــت د ډېــرو وګــړو پــه ګټــه خــو پــه ټولــه کــي يــې ډيــري برخــي د عقيــدي او عــرف او عــاداتو ســره نيــغ پــه نيغــه ټکــر درلــود، ذکــر کــول د افغانســتان پــه وضــعيت د پوهيــدونکو مينــه والــو تــه ښــه مرجع کيداي شي.

همدارنګـــه د افغانســـتان پـــه ګـــوټ ګـــوټ کـــي د اســلامي ډلــو لخــوا پــاڅو نونــه او کمونســتي نظــام څخــه فعالــه افســر ان او عســکر لــه مجاهــدينو ســره يــو ځــاي کيــدل هغــه څــه دي چــې د نــور محمــد ترکــي او حفــيظ الله امــين د دوري د کړنــو جريــان د تــاريخ پــه ژبــه پــه انځــوريځ شــکل پــه ليکلــي بڼــه منعکس کوي.

د حفــيظ الله امــين څــو مخــي پاليســي، ځيرکــي پــه عــين شــکل کــي د څــو لوبغــاړو رول لوبــوونکي کرکټــر، شــرق او غــرب او لــه خپــل اســتاد (نورمحمــد تــره کــي) او ګونــدي غړيــو ســره هغــه څــه دي چــې ليکنــې تــه جــذابيت ورکــوي او د نــن لوســتونکيو تــه پــه ليکلــي بڼــه ســره کــره او پخــه تجربــه مخــي تــه ږدي ،او روســان دي تــه اړ باســې چــې ټــول نړيــوال تړونونــه تــر

پښتو لاندې کړي او د امین په وژنې سره نیغ په نیغه په افغانستان کې مداخله او یرغل کوي په ګوته شوي.

د نورمحمد تره کي بې وسي، د امین راګېرېدل په خپل جال کې ،د شرق او غرب بې باوري په امین هغه څه دي چې په مستند ډول په لیکنه کې شته چې لوستونکي لانوري زیاتي مطالعې ته اړ باسې ډېر ما هرانه کار دي.

لیکوال د افغانستان جیوپولتیک اهمیت ته په کتو سره د دوه ښامارانو (روس او امریکا) شوم اهداف هم څېړلي چې ولي او څنګه او آن له کوم وخته یې غوښتل چې افغانستان ونیسي یعنې دلته ګران هیواد په اړه د پښتو دا متل را یاد شي چې وایي (پیغلې پورې خپل ښایست اور دي) په افغانستان کې سپینه کودتا او که توره کودتا خو روسانو د پترکبیر له وخته غوښتل چې افغانستان څخه تېر او خپلي پښې د هند سمندر په ګرمو اوبو کې پریمنځي.

د کارمل د حکومت کولو په باب چې جاه طلب او ډارن شخص و هر اړخېزه یادونه شوي او د هیواد او ولس په اړه چې هجرت ته اړ شول ذکر کړي دي چې د ده په څیر شخص روسانو ته مناسب و تر څو خپلي طرحې دده په وجود کې پلي کړي.

دا چې د افغانستان په تاریخ کې افغاني خویندي او میندې له ځوانانو پاتې نه دي او تر هرې تاریخي سوبې

شـا تــه یــي لاس وي د روس د یرغــل او د کارمــل د حکومــت پــه دوران کــي د ناهیــدي ذکــر کــړي چــې نــن هــم لکــه د میونــدي ملالــې پـرې افغـانـانـي پېغلـې ننـڼ کـوي لـه پامـه نـه دي غورځـول شوي.

لیکــوال د کارمــل د حکومــت او روس پــه مقابــل کــي د مجاهــد ولــس د پــاڅو نونــو پــه بــاب د جنــوب لوېــد یځې برخــې ډېــر مهــم مشــران یــو پــه یــو یــاد کــړي چــې پــه دي کــار سـره یـي خپلــه دغــه لیکنــه لا نــوره هــم مســتنده کــړي د جهــاد ســپېڅلې لارې د لارویانو حق یي هم یو څه ادا کړې دي.

د روســانو پــه مقابــل کــي د افغــان ولــس دربېــدل او کمونســتي حکومــت او روســانو پــه هــر ځــاي کــي حملــي او پــاڅونونو روســان دي تــه اړ ایســتل چــې د کارمــل یــو مناســب بــدیل پیــدا کــړي تــر څــو واک تــه هغــه ورســوي او دوي ځــان تــه خونـدي لار پیـدا کـړي او لـه افغانسـتان څخـه ووځـي چـې نجیـب الله د (خــاد) څــارګري اداري مشــریې غــوره کــړ پــه پــوره تفصــیل سره یادونه شوې.

نجیــب الله د ســولې وړانــدیز وکــړ خــو د مجاهــدینو د رهبرانــو لخــوا پــه مســتندو دلایلــو ردول چــې د دې رهبرانــو د جملــي څخــه د حکمتیــار دلائیــل ډېــر قــوي، مقنــع او امیــد وار کننــده و چــې پــه ولــس یــي د نــوري ســترې بریــا غــږ او زیــري

مخکې له مخکې وکړ چې د لیکوال له خوا د مکان او زمان په قید سره چې د تاریخ اصلي تعریف بشپړوي ذکر شوي.

همدارنګه د ډاکټر نجیب الله په دوران کې د مجاهدینو منظم پرمختګ او د روسانو متزلزل حالت، د ژنیو د کنفرانس د مذاکراتو پیل د حکمتیار دریځ چې هیڅوک هم د مجاهدینو په استازیتوب پرته د دوي له خوښې مذاکرات نه شي کولي او ورسره د ډاکټر نجیب الله د هغه فرمان یادونه چې له مخې یې له ټولو دولتي ادارو د ستالین، مارکس او نورو د عکسونو راکوزیدل په ډېر عملي شکل راوړل شوي چې د لیکنې مطالعه جالبوي او په ترڅ کې د روسانو د وتلو مهال ویش ترتیب او ټاکل شوي نېټه پیل کېږي.

ستاسې په لاس کې لیکنه کې د مجاهدینو او نړیوالو تیروتنې، د طرفینو(روس، مجاهدینو) تلفات په مستند شکل ذکر شوي او ور سره خوا کې د مجاهدینو خپل منځي اختلافات راغلي دي چې په سیاسي او تاریخي لحاظ یې مطالعه اړینه ده.

لیکوال په خپله لیکنه کې د مجاهدینو د میړانې په باب او د ورانیو په اړه په بشپړ ډول یادونه کړې چې په یو ځای کې د ارغنداب د ښکلي ولسوالي د پسرلي په موسم کې د خزان او منې ذکر د یو قوماندان له خولې کټ مټ کوي

خو (مشت نمونه خروار) د ګران هیواد د هرې برخې په پسرلي خزان راغلي بشپړي کورني تباه شوي کلي هموار شوي باغونه او شنه ځایونه په سپیرو دښتو بدل شوي دي چې د زړه سر خوږوي یاده کړې.

د نړیوالو تیروتنه چې په ژنیو کنفرانس کې د یې د قضیې د اصلي او مهم غړي (مجاهدینو) نه حضور هغه څه و چې لیکوال ذکر کړي چې په خوله یې بد عواقب تر اوسه ګورو.

لیکوال په خپله لیکنه کې د اسلامي تنظیمونو په خپل منځي اختلافاتو او د ځینو خلکو په ځان غوښتنه د شواهدو په رڼا کې او همدارنګه د خپل لید لوري غږیدلي چې د جهاد د دوران د حالاتو څخه ځان خبروونکو اشخاصو ته د لازیاتي مطالعي او پلټني لار پرانیزي یو بیل هنر دي.

دعبوري حکومت په باب هوکړې ،مخالفتونه، د نور و تنظیمونو او د حزب اسلامي دریځ د ټاکنو په باب وضاحت هم د لوستونکو ذهن د مجاهدینو ترمنځ د اختلاف په باب په دي لیکنه کې ، د تڼي او نجیب الله ترمنځ اختلافات، د تڼي د کودتا په باب څو افواګانې او د تڼي اړیکي له حزب اسلامي سره هغه څه دي چې د مستندو شواهدو او اشخاصو په اساس لیکنه نوره هم پیاوړي او ذهن روښانه کوي.

د تېنې د کودتــا د ناکــامي پــه اړه د جهــادي رهبرانــو، پاکســتان، هنــد ، ايــران، امريکــا او شــوروي اتحــاد دريځونــه هغــه څــه دي چــې لوســتونکو تــه چــې غــواړي د افغانســتان د ډېــر نــږدي او خــورا مهــم تــاريخ څخــه د خبريــدو پــه برخــه کــي د ډېــر ارزښت وړ دي.

خپلــې خبــرې رانغــاړم د ليکنــي او ستاســو تــر مــنځ نــه واقــع کيــږم او الله ج تــه لاســونه لپــه کــوم او ليکــوال تــه د لاډيــرو برياوو غوښتنه کوم.

د خپلې دعا د قبليدو په هيله

پو هيالي فضل خالق(( للموال))
د کندهار پوهنتون د حقوقواوسياسي علومو
د پوهنځی ريس

# دليكوال خبري

## الحمد لله الرب العلمين

دلتـه دمـرګ يـو كرونـده ژونـد پـه فصـل غـواړي يـــارانو ،چيـــري بـــه جـــونګړه دژونـــدون لټـــوو درنو لوستونكو !

دپخـــواني شـــوروي اتحاددوروســـتي جمهـــورريس ميخايـل سـرګېويچ ګربـاچوف خبـره يادتـه راغلـه ،چي ويـل يـې : ((افغانستان موږ ته يو دناسور زخم دی )).

مـوږ لـه قـانع دښـمن نـه پـه دې خـوښ يـو،چي هغـه زمـوږ مېړانــه منــي خــو كــاش مــوږ دخپــل سياســي مبتكــر لاړښـود ((سـيد جمالـدين افغـان )) خبـره منلای ،چي ويـل يـې (( افغانـانو پـر دې خبـره يـووالی كـړي ،چي بـې اتفاقـه بـه وي )) لــه نــژدې ځلــوركلنۍ را پــه دې خــوا ،چــي مــي ســترګي دژوندانـــه پـــر اړخونـــو لګېـــږي بـــس دكودتـــا ګـــانو ، انقلابونو،پاڅونونو،مړينو،تښـــــــــــــــتو،ورانيو،چور ، مرســـتو،انعكاس ځځـــه پرتـــه بـــل څـــه نســـته ،چـــي دسترګوترعدســيورادرومي اوپــه ږغــومي دغــوږ پــردې پراهتزازراولــي.دادی دژونــدون بهــار،چي مــي هــم ددريمــي لســيزي تــر پولــو را اوړي. ((همــدا اش او داكاســه ده)). دې حوادثوټـول افغانـان متـاثركړل هغـوئ يـې پـر چـم دچمونولـه

دردونو سره مخ کړي دي، نژدې پنځلس کاله تر مخه ،چې
زه په تنکيوالـه کې وم، بس دا مې هوډ و ،چې يو دا سې
ليکنه بايد ټولني ته وړاندې کړم تر څو خپل تاريخي
رسالت په بشپړ کړم، خو له يوې خوا دليکوالۍ پر
مهارتونو نه بر ياليتوب او له بلې خوا ليکلي دا سې
مستند څه په لاس کې په ډېر لږ وه،چې ددې کتاب په ليکو
کې ګټه ځينې واخلم يو شئ ،چې همغه وخت را سره
موجود و هغه دنن په پر تله ډېر ژوندي يادښتونه وه ،چې
البته اوس به دتېر زماني واټن په تېرېدوتر ډېره له ياده
وتلي وي.

د دې سره ـــ سره مې دايادونه ددې جوګه سول دا
ټولګه وځندېږي اوس ،چې دا ليکنه کېږي ماخذونه يې
اکثريت ماد بېلابېلوخبري اژانسونوله هغوکستونوڅخه
کړي کوم ،چې دتېروکلونوپه لړ کې مې د(بي بي سي ،
امريکاږغ،کابل را ډيو،او نورو...) له پريکانسيو څخه ثبت
کړيدي ور سره ترڅنګ دځينومجلو،خبري رسنيو ،
بيلابېلوکتابونه او کله نا کله په علمي مجلسونو او ناستو
او پاستو کښې په تېر جريان پوري داړوندو ددوه اړخيزو
خيرو څخه دياداښت داخيستني پر مهال تماس ددې لامل
سوی ،چې تردې پړاوه را ورسېږم ،ولې تر دوئ سر بېره
ترډېره زمايادښتونه هم په کښې سته ديوه مؤرخ په توګه

مـي هڅـه داده ،چـي دلتـه بـې طرفـي پـه کښـي وسـاتم پـردې بنسـټ ،چـي ددې کتـاب دمـتن ټولـه موضـوع دافغانسـتان دمعاصـر سياسـت لړتـه ځـآنګړې سـوې ده . دمـتن لـړ يـې دمحمـد داؤدلـه دورې را پيـل او دډاکټرنجيـب الله ددورې تـر سـقوط پـوري دوام لـري پاتـه برخـه يـې کېـداى سـي ،چـي دفرصت څخه په ګټه په راتلونکي کتاب کي خپورسي .

دليکنـي پـه پـاى کـي لـه هغـو درنـو څخـه مننـدوى يـم ،چـي ددې کتـاب دليکنـي پـه اړونـدزما دخپلـي ارادې تـر څنـګ هڅـولى يـم دمـتن کتنـي پـه اړونـد لـه درانـه ورور ښـاغلي عبـدالهادي ((ارغنـديوال)) دتصـحيح پـه اړونـد لـه پاخـه ليکـوال فضـل مـولا ((لټـون )) او پـر همـدې کتـاب دليکلي نظر څرګندوني پـه اړونـد دکندهار پوهنتـون د درانـه ريـس ډاکټـر حضـرت ميـر ((طوطاخيـل)) او دکنـدهار پوهنتـون دسياسـي علومودپـوهنځۍ دريـس فضـل الخـالق ((للمـوال)) څخـه مننـه . کـه ژونـد وو او پـر سـر مـو دمرګـي بېلچـه نـه وه ټکېـدلې دحضـرت صـبغت الله ((مجـددي )) لـه دورې بيـا تـر دې وختـه بـه ((انشـاالله )) پاتـه مسـايل ددې موضوع په دوهم ټوک کي وڅېړل سي .

په درنښت

نوراحمد ((قرانمل))

کندهار غريبك کتابتون کندهار۱۳۸۸/۱/۱

# دچنګاښ ۲۶تمه

# ۱۳۵۲ــــ۱۳۵۷

دنړۍ په هیوادونو کي ،چي کوم انقلابونه کېږي دهغو انقلابونو اهداف هم دانقلابي رهبرانو دخپلي جاه طلبۍ تر څنګ دملي منافعو دساتني او نوښتونو ور کولو پر بنسټ ولاړ وي ،چي انقلابي رهبران يې پر مخ بيايې، اما کودتا ګاني هغه وي ،چي يوازي دپرديو يو غلګرو دراتګ لپاه زمينه برابروي او يا هم دزراو زور له لاري خلګ ځانونه واك ته رسوي ،چي پداسي حالاتو کي پاڅون کوونکي کوم ملي ملاتړنه لري بلکي ، پرخپل زور متکي وي ، په افغانستان کي هم دا سي سوي ،چي يو له دغو پخپله دجمهوري انقلاب مشر محمد داؤد خان يو ملي سړئ •خو تر ډېره يې عمله دخلق ډيموکراتيك ګوند غړي

---

•د محمد داؤد خان په اړوند دهغه په وړاندي په کودتاه کي دخيل کس سيد محمد ګلابزوي وايي ((زه داؤد خان ته سخت متعقد سړئ يم او په شهادت يې خفه سوي يم )) ګربت مجله شپږم کال پنځمه او څلرمه ګڼه ۳۰ مخ په دې اړوند عبدالحمېد مبارز دبي بي سي را ډيو سره هم په يوه مرکه کي وويل (( دا ټول وروسته دخلق دګوند غړي وپېژندل سول او بيا يې دثور په کوتاه کي برخه وا

دخلکـو دګونـد نظـامي کښـته رتبـه افسـران ول •،چـي پـه افغانسـتان کـي يـې جمهـوري بـدلون را منځتـه کـړ د محمـد

---

خيسته البتـه د محمـد داؤد خان پـه کودتـاه کـي داسـي څېرې هم وې چـي د کـېن اړخو سره يې هيڅ اړيکي نه درلودې ثبت د ((غريبك ارشيف))

اما داؤد خان ددفاع وزيراو دهغه انډيوال پاګل وفـادار بيـا پـر دې نظر ؤ چي دمحمد داؤد خان اصلاً دا کسان چي په کو دتاه کي شامل ول کمونيسـتان نه او يا به هم ددوئ لـه کمونيسـتي تـوب څخـه خبـر نـه وو ((لـه داؤد خان سره پـه هغـه وخت کـي پـه دغـه نـوم بانـدي چـي دا خلقـئ دي دا پرچمـئ دي څـوك يـې نـه پيژندل او نه له دغو خلګو سره داؤد خان تماس درلود )) ثبت د ((غريبك ارشيف))

په دې اړوند دهيـواد يوبـل سياسـتوال عزيـزالله واصفي چي د محمـد داؤد خان له نژدې مخلصينو څخه ووايي (( لـه بـده مـر غـه درتـه ووايم چي دده پـه ملګرو کي داسي يو سړئ چي داؤد خان په واقعي فلسفه وپوهېږي او د داؤد خان په مقابل کي اظهار دحقايقو و کړای سي دا سـي خلك داؤد خـان نـه درلـودل پـر داؤد خـان يـوه ډلـه خلك را ټـول سـوي ول ،چـي خپـل خپـل قلبـي او مکنونـاتي او احساسـات يـې درلـودل لکـه دخلـق او دپـر چـم ډلـي خلـك . وك ((ژونـدی خاطرې ))بي بي سي پښتو خپرونه

خو ځينو سياستوالو بيا محمد داؤدخان لـه دې واقعتونو خبر بالـه او هغه دپر چم ګوند رسماً ملګرئ باله پـه دې اړ ونـد هـارون پخپـل اثـر (( داؤد خان دکي جي بي په لومو کي )) ليکي :

• په دې اړوند دسياسي تحليلګرانو نظريې بيلي دي ددوکتور نجيب الله دورور صديق الله را هي پشان ځيني سياسيون دا نظر ور کوي چي دسرطان دشپږويشـتمي ورځـي سـپينه کودتـا چـي سر دار محمـد داؤد دشـاهي دولـت پـه وراندي وکړله اصلا پاخونيان دخلق او پر چم ګوند مشران دي لکه چي دوئ وايي (( د داؤد د۱۳۵۲ کـال دچنګـاښ د۲۶ تمـي نېټـي کودتـاه چـي دخلقيـانو او

داؤد خــان پــه دوره کـــي دهغـــه نظـــام منځتـــه تـــه راتـــلو افغانســـتان دنـوي مترقـي نظـام پـر لـور ګامونـه اوچـت كـړل ، او هغـه نوښـتونه را منځتـه سـول ،چيهيڅكلـه يـې چـا تصـور هـم نـه سـواى كـولاى د محمـد داؤد خـان دصـدارت ددورې پـه لـړ كښـي دطرحـه سـوو انكشـافي پلانونـو پـه دوهـم ځـل بيـا رو ي كارېـدل او دخلګـو لخـوا پـه احساسـاتو كـي دپښتونسـتان دسـتونزي پرېكنـده حـل د محمـد داؤدخـان دكـاري پلانونـو پـه لمړيتوبونـو كښـي وو ،چـي دخلګـو پـه خوښـي سـره بـه اســـتقبالېده ددې تـــر څنـــګ يـــو پـــه بـــل پســـي دلويـــو

---

پرچميانو په مرسته او ګډون بري ته رسېدلي وه)) ځيني سياسيون بيا دهارون پشان په دې نظر دي چي واى نه په كودتاه كي يوازي دپرچميانو لاس و، خلقيان نه وه پكښي دا خل لكه يووار چي نور محمد تركي دداؤد خان څخه دملاقات غوښتنه كړېوه او هغه ور ته ته ويلي وه چي زه دپر چميانو پر دوستي لاپښېمانه يم)) ځكـه يـې نـو تـر كـي تـه دليـدلو موقـع نـه وه وركـړې امـا دخلـق دديموكومراتيك ګوند دهغه وخت ځيني كښته رتبه غړي دجنرال شهنواز تڼي او ګلابـزوي پشـان بيـا هـم دجنګـاښ پـه كوتـا كـي شـامل ول چي دا ددې ګواهي ور كوي چي دخلق او پر چم دواړوډلو غړو په دې پا څون كي لاس در لـود په دې خبره كي دجوانان مسلمان ډلـي بيـا پـه دوئ كـي كـوم تـوپير نـه حسـاوه او لـه يـوه لاسه څخه وبل لاس ته يې يو اووښتون باله هغوئ ويل چي هر چا چي واك لـه چـا تر لاسه كړي د ولس او مسلمان ملت په وړاندي يې ستراتيژي يوه ده چي په دې صورت داؤد خان ، خلق او پرچم ټول سره متحد اود ځان په ګټه يې هغـه كـار تمـام كړ كوم چي په پوره ډول يې په شاهي نظام كي نه سواي تر سره كولاى

جرګوجوړښت دوکیلانو• له لوري ددولت لپاره درهبر ټاکنه دوکیلانو په وسیله دخلګو پر زوړونو حکمرانۍ، دولتي مامورینو ته دمځکو ویش، کوپونو تهیه، او پر سرمایداري طبقې باندي دمترقي مالیې اچونه له یوه اړخه تمامه فیوډالي ټولنه له منځه وړل ور سره تر څنګ یې ددولتي مامورینو دورځینیوو احتیاجاتو ستونزو حلول وه.

## دمحمد داؤدخان منځته را تګ اړتیا

محمد داؤد خان دمحمد ظاهر خان داکا مشر زوي اوپه شاهي کورنۍ کي خپلواك فکر، قاطع تصمیم او دوطن دوستۍ هغه ته بیل ځای ورکړی، یا په دې معنی چي په شاهي کورنۍ کي د محمد داود خان اودهغه دکورنۍ مینه وه، چي په دې وختونو کي هغه جمهوري واك ته ورسېدی نو دده مینه او نفوذ په کورنۍ کي څو

---

•داولسي او سنا جرګې دوکیلانو سره دسلوك او روغبړ په اړ وند یې دهغه وخت دلویې جرګې یو غړئ او دزابل ولایت استازئ منګل احمد خان ((ثارنوال))وایي :

هغه یوعجب سړئ ؤ په خبره به یې خلك نه پوه کول چي ستاسره کوم مشکل لرم ، بلکه دهر وکیل سره چي به یې جوړه نه وه یوازي به یې لاس ور کړ او بیا ورته وویل ((چي طور هستي ؟ خانه خیریت است ؟!نور به ځیني ټُیر سو او له هغه چا سره به یې چي جوړه وه نو به یې دمغزي څخه لوړ دسربرخه لړ څه دا سي کښته کړې وه دهغه لاس به یې په لاس کي نیولي وو او څو ګړیه به ور سره ورېغېدئ ))

چنده سوي وو همدا لامل و ،چې وده ته دا چانس په لاس ورغی،چې پاچا له واکه ګوښه کړي ، او واك رسماً په لاس کې ونیسي .ددې بهیر درامنځته کېدو او جمهوریت ته دبر یالیتوب علتونه ښايي تر دې نور زيات وي

دسمي او ولس هغه سپينږري ،چې لاتر اوسه ژوندي او دسر دار محمدداؤد دصدارت او رياست دوره يې په ياد ده ډېر يې دا کيسه کوي ،چې هغه له صدارت څخه تر استعفي وروسته نژدې خومياشتي دا سې لادرکه سو ،چې چا يې پته نسواى څر ګندولاى ،وروسته دروميا شتو داخبره خپره سوه ،چې محمد داؤد خان پر اس سپور اودهيواد پر ټولو کليو او بانډو را وګرځېد او دا يې معلومه کړه ،چې ولس په معاصر وخت کې څه ته اړ تيالري،چې نېغ په نېغه يې ځيني نوټ او بيايې هغو ته دعمل جامه ور واغوستله څو ورسته يې انقلاب وکړمحمد حسن شرق ،چې دسر دار محمد داؤددحکومت ددورې يو لوړ رکن بلل کېدی هم په دې باور دی ((روابط داؤد خان با مردم روز تاروز توسعه يافت واو در اثر خواهش دوستان خود بيك دوره افغانستا ن کې شا مل ولايات پروان ، باميان قندوز ، بغلان مزار شريف جوز جان ، ميمنه ، باد غيس هرات ، فراه ، هلمند ، قندهار ، قلات ور دك وغزني ، بود اقدام وازاين سفر را ضي بر ګشته بود)).

## دجمهوري نظام دبرياليتوب قهرمانان

په افغانستان کي هر شوني کار ناشوني او هر ناشوني کار شوني دي دافغانستان دپېښو او مطالعاتو په اړوند اګاه او د ((داؤدخان دکي جي بې په لوموکي)) دکتاب ليکوال ښاغلي محمد هارون پخپل همدې اثر کي ،چي جمهوري نظام دبر ياليتوب امر هم د محمد ؤد خان په لاس کي و دئ وايي (( محمد داؤد خان دکور دصوف پر بام دهغه له ناظر حاجي باز محمد سره ناست و د شپې دوې بجې وې ،چي دا خبره يې وکړه ،چي (( اګر بچها يکدفعه شروع کند پيروزي ازماست)) ددې پاڅون پرمهال ،چي سهار دکابل واک نوي رژيم ته تسليم سوى وو ، چي داسر دار محمد داؤد خان دخپلي پريکړي خپل تصميم او خپل اقدام په رڼا کي دا کار وکړ څکه نو هغه دجمهوري نظام مخکښ او موسِس وبلل سو، خو دنوموړي انقلاب تر بر ياليتوب وروسته دعامه ولس په وړاندي دهغه ډېري خوشبينۍ نه يوازي دجمهوري نظام تر بر ياليتوب وروسته ، بلکي لامخکي ځيني سياسي کړۍ دې ته جوړې وې ،چي له ده سره دي دوستانه اړيکي ولري او بيا ددې دکودتا په جريان کي په لږ يا ډېر کار سره ځانونه ددې کړني قهرمانان وبولي.

هغه څوك ،چې دده سره په دې سیاسي مبارزه کې نسبتاً شریکان بلل کېږي دپرچم ګوند ځیني غړي دي خو ددې کودتا په بر یالیتوب کې دخلق ګوند غړي هم خپل ګوندي فعالیت ښیي او له پرچمیانو ځانونه کم نه ګڼي او دا پاڅون دخپل لاس محصول بولي دساري په ډول سید محمد ګلاب زوي وایي ((کودتا دشپې پر یوه بجه پیل سوه شروع یې دقوماندو له قطعې څخه وه ،چې د۴۴۴قطعې په نوم یا دېدله موږ ته وسله پخپله فیض محمد راکړه اودقطعاتووظایف معلوم وه زموږ ګروپ ،چې په هغه کې دهوایي قطعاتو قومندان ، دمدافع هوایي قو مندان ، هوایي ریس ار کان او بیاوروسته څو قو مندانان هم وه ،چې وروسته څو ګروپو نو خپله وظیفه اجرانه کړه))یا دولای سو.

له دې یادوني څخه دا استنباط کوو ،چې دداؤد خان دجمهوري نظام ددې سپیني کودتاه قهرمانان هغه څوک ول ،چې وروسته دهمدې داؤد دمړیني لامل سول

# پرتي طبعي او سياسي ستونزي

- *لمړۍ ستونزه*

دشــاهي نظــام پــه ورســتيو ورځــو شــپو كــي افغانســتان پــه ځــانګړي ډول دجنــوب غــرب حــوزي پــه وړانــدي داقليمــي تُربــت نــه هــواري دا سمه لــه وچ كــالۍ سره مــخ كړېــوه كــوم ،چــي لــه نيمــه وچ اقليمــه يــې سر،چينه اخيســتله ، دې اقليمــي وچــوبۍ لــه املــه دســمي او ســپدونكي دخــوراكي مــوادو، غلــې ، دانــې او حبوبــاتو لــه كمښــت څخــه پتنــك وه دخلكــو ستونزوددډېرښــت ســره دولــت مجبــوراً لاس او ګرېــوان ؤ او اړو ،چــي بايــد دخپــل ولــس لپــاره يــې هغــه څــه كــړي واى،كــوم ،چــي ولــس اړتيــا ور تــه درلــوده ،دې بشــري نــاورين دخلكــوتر څنــك پــه دولتــي كړيــو كــي درشــوت اخيســتني دود او اداري فســاد اوج تــه رســولي ؤ يــوازي دهيوادبــډاى خلــك دشــتو پــه ښــندلو ددولتــي دســتګا دمــنځ پــوړو مــامورينو موريــدان ول .ســرمايدارانو دلــوړو امكانــاتو لــه پلـي كولـو سره لـه مـامورينو ،چي كـوم څه لـه سرمايدارانو اخيسـتل، هغـه پـه عـوض كـي د هغـوئ هـر څـه منـل ،چـي دې كار دولس پر پس پاته طبقې اغيزه ښندله.

ددې اغيــزې لــه څرګنــدونو څخــه لمــړئ دشــاهي دولـت او بيـا دجمهـوري نظـام لـوړ پـوړي چـارواكي پـه دې نـه خبرېـدل ،چـي دمنځنـۍ طبقـه مـامورينو جرګـو دوكيلانـو او

سرمایه دارانو ستونزي حل او دا دمماس نقطه ،چي دلوړ پوړو چارواکو او عامه ولس تر منځ يې دارتباطي پله حیثیت درلود پخپله خود کفي او دنورو په کیسه کي نه وه ، دا بشري او موسوني ستونزه ،چي له شاهي دولت ځخه وجمهوري ته دولت ته په میراث پاته سوه خلک دجمهوري نظام له نوبت سره مخ وه اماد دولت څخه دولس هیله دا وه ،چي دنورو ستونزو دهواري په پرتله دوچکالۍ ناورین ته لمړیتوب ور کړي په دې اړوند دجمهوري انقلاب مخکښ نه یوازي ددې ستونزي په اړوند خپل ځان و مسؤل نه کړ، بلکي ددې ناورین پړه يې دمخ پرودي هیوادونو پر بازارنو وراچوله په دې اړوند د محمد داؤد خان هغه جواب ،چي دفرانس پرس دخبري اژانس د مرك،چي دسوال په غبرګون کي څرګند یږي:

(( دانقلاب څخه دمخه زموږ دوطن حالت همغه شان ؤ،چي څرګند مو کړ))

له اتلسو میاشتو وروسته ،چي زموږ اقتصادي حالت دوخت اود هیواد دمالي امکاناتو په تناسب مخ پر ښه کیدو دي خو له بده مرغه دنړۍ دانر ژۍ کریز او انفلیشن (انفلاسیون ) ،چي په تیره بیا مخ پر ترقي هیوادونه تري ګوښه نه سي پاته کیدلای رامنځته کړی زموږ دتشویش اواند ښنني ور دي ځکه دمخ پر ترقي

هیوادونو دضرورت وړ مواد و بیه ،چې صادره وي یې مخ پر ټیټیدوده،شك نشته ،چې دغه حالت دټولو مخ پرترقي هیوادونو دپاره داندېښنې وړ دي زموږ په راتلونکو پلانو کي البته کوچنی او ستري پروژې په نظر کي نیول سویدي ،چي ټول تر مطالعې او سروې لاندي دي امید لرو ،چي په راتلو نکي یو یا یو نیم کال کي به بشپړي سي ››•

دوهمه ستونزه

دپښتو نستان مسئله کوم ،چي د محمد داؤد خان دصدارت په دوره کي یې موضوع په خورا توندي را پورته سوېوه او بیا د محمد ظاهر خان لخوا دپوره تدبیر په تر سره کولوسره سړه سوېوه .

دجمهوري نظام په بریالیتوب سره ،چي کله یو ځل بیا دبلوچستان په سمه کي دبلو څو او ذوالفقارعلي بوټودحکومت تر منځ ستونزي را وټولکېدلي او ځینو بلو ځانو دافغانستان جنوب غربي ولایاتو په ځانګړي ډول کندهارته پناه راوړله دجمهوري نظام چارواکي په دې وخت کي اړ ول ،چي ددوئ پالنه او روزنه وکړي اما دپاکستان هیوادچار واکو دا پالنه دهجرت په نوم نه بلله ،بلکي هغوئ پر افغاني مقاماتو اتهام لګاوه ،چي

---

•دافغانستان جمهوریت ‹‹ ویناوي ، پیغامونه او مطبوعاتي مرکې ››
۱۲ ګراف ۱۳۵۳جنګابښ ــ۱۳۵۴جنګابښ ټولګه غریبك ارشیف

دپاکستاني مخالفینو ننګه کوي او بیا یې دپاکستاني هیواد په وړاندي اغتشاش ته چمتو کوي دموضوع په اړوند دسمي یو اړین هیواد ایران ،چي بلوچستان ته پرته خیرمه پوله لري دشخړي څخه دراکښون په موخه یې ځان شاته کاوه او دافغانستان او پاکستان تر منځ به دیوه منځګړي په توګه را ځرګندیده اما تر پایه پر دې یوه خبره رضاشاه پهلوي دپاکستان پلوي پاته سو . ویل یې ،چي دبلوچستان سمه په پاکستان پوري اړه لري خو محمد داؤد پخپله پردې ټینګار کاوه ،چي که په افغانستان کي دبلوڅو مهاجرو دکډو لړۍ پراخه سي .

دوئ به دملګرو ملتونو دمهاجرو چارو له کمیشنرۍ څخه مرسته غواړي په دې اړوند یو ځل بیا دشهید محمد داؤد خان دخبرو یوه بیلګه «البته که دبلوڅو پناه وړونکو شمیر زیات سي هغه وخت به مجبور و. اوسو دغه موجوده ستونزه به دغې اداري ته وړاندي کړوترڅو ،چي زموږ سره مرسته وکړي» *خو دا موضوع که داوس په پرتله وڅېړل سي ،نو خلګو ته سوال پیدا کیږي ،چي په هغه وختونوکي دپاکستان مقتدر ګوند او صدر اعظم «بوټو» هم پخپله کمونیست پلوه او همدا شان په

---

*دافغانستان جمهوریت «ویناوي ، پیغامونه او مطبوعاتي مرکې»
۱۲ ګراف ۱۳۵۳جنګابن ــ۱۳۵۴جنګابن ټولګه ۹ مخ        غریبك ارشیف

غیــر مســتقیم ډول دســردا رمحمــد داؤد خــان پــه دولتــي دســتګاه کــي دننــه کمونیســتو پرچمــي کړیــو موجودیــت درلــود ،چــي بلوڅــان دي جبــراً هجــرت تــه تیــار ســي تــر څــو داؤد درژیــم خوارځواکــه کولــو لپــاره بهانــه پیــدا ســي کــه څنګــه ؟ لیري نه بریښي ،چي دمسکو په مر موزه حرکت دي

دبوتـــو پـــه توســـط پربلوڅواوپښتنوفشـــاروارد ســویوي هغــوئ دي افغانســتان تــه را مهــاجر ســویوي او لــه دي لاري دي د محمــد داؤد دولتــي دســتګاه لــه ســتونزو ســره مــخ کــړل ســي او بیــا دوئ «مســکو» دموضــوع پــه حــل کــي مرســـته او روســـان ددي موضـــوع دحـــل لپـــاره پـــه دي منځګــړي تــوب خپــل شــرایط داســي پــر افغانســتان وتپــي لکــه دشـــاهي دولـــت پـــه وختونـــو کـــي ،چـــي یـــي دپښتونســـتان دستونزي پر سر په نوموړ ي منلي ول .

پــه هــر ګــون ،چــي ول دبلوڅــو دراتــلګ پــاي لــه پــردي ســوله تــر څــو پاکســتان دافغــاني دولــت هغــو ځوانانوتــه پــه پخپلــه خــاوره کــي دپنــاه ځــاي ورکــړي ،چــي ددولــت څخــه دپوهتــون دزده کــړو پرمهــال د هغــوئ دغوښــتنو دنــه منلــي پر اساس خوابدي سوي ول •

دریمه ستونزه

---

•ګربت مجله پرله پسې دیار لمه ګنه ۲۲مخ لمړئ ستون دحبیب الله «رفیع لیکنه»

بلـه سـتونزه دجمهـوري نظـام پـه وړانـدې دمخـالفینو زیـادت ؤ او پخپلـه دکمونیسـتانو او مسـلمانانو ځوانـانو تـر منـځ پرتـه سـونزه وه او بلـه پخپلـه دکمونیسـتانو دپریکسـونو نـو تـر مـنځ شـخړې دمخـالفو کسـانو دا پروسـیجر پـر دوو برخـو وېشـلئ ؤ یـوه دهغـو ناراضـې خلقیـانو ډلـه وه، چـې سـر دار محمـد داؤد د هغـوئ پـه پـر تلـه وپرچمـې کړیـو تـه ډېـر وخـت ور کـړې ؤ ،چـې پـه دې کـار دخلقیـانو ډلـې ځانونـه دجمهـوري دولـت څخـه لیـرې احسـاس سـول او ددې واټـن دجبـران لپـاره یـې بېلابېلـې طرحـې جـوړولې او بیـا بـه د هغـوئ درغولـو لپـاره محمـد داؤد خـان دخپـل فعالیـت سـپیناوی کـاوه ،چـې ګـواکې مـوږ دادئ دپـرچم پـه پـر تلـه جمهـوري نظـام تـه ډېـر څـه کو.

تـر دې راوړانـدې داسـلامې نهضـت ځوانـانول ،چـې پـه دولـت کـې یـې دکمونیسـتانو دډلـو تصـفیه غوښـتله هغـوئ ،چـې پـه هرڅـومره تـوان ددې کـار مخنیـوی کـاوه ددولـت پـه پرتلـه دهغوکمونیسـتې حلقاتوتربریدلانـدې را تلـل ،چـې پـه دولتـې دسـتګاه کـې یـې کارکـاوه داخوانیانوهرپـاڅون واکمنـو کړیـو تـه دکمونیسـتانولخواپه دولـت کـې داصـلاحاتو پـه نـوم نـه بلکـې دپاکسـتاني دولـت دتـوطیې پـه نـوم ؤ پـه دې اسـاس یـې داسـلامي نهضـت دځوانـانو مشـرانو لـه جملـې انجنیرحبیـب الـرحمن د داؤد

خان دوژلو په تور ونومول سو او بیاوروسته ددولتي زندان کوټوته ورسېداوبیااعدام سودا ،چي حقایق به دشهیدانجنیرحبیب الرحمن اومحمدداؤدخان ترمنځ څه وه؟!

هغه له دوئ سره ولاړل .

په دې اړوند دحزب اسلامي مشرانجنیرحکمتیاربي بي سي را ډیوته په یوه مرکه کي وویل ،چي «موږ رژیم دې ته مجبورکړو،څکه ،چي هلته قدرت دکمونیستانو په لاس کي ؤ....هدف داؤ ،چي اسلامي تحریك وتکوي موږ احساس دخطراحساس وکړ،مجبورسوو درژیم په وړاندي دمقابلې بله لارنه وه» •

• ځلرمه ستونزه

دانجنیر حبیب الرحمن ترنیول کېدو وروسته ددې ګوند دنظامي چارو لارښوونه انجنیر حکمتیار پر غاړه واخیستله او دهیواد په ځینو ولایاتو کي ددولت په وړاندي مسلحي ستونزي راو• زبرېدلې دجمهوري دولت

---

•وګ «ژوندی خاطرې» ۲۰۳ ــ ۲۰۴ مخونه دداکتر عبدالعلي ارغنداوي اثر

•وګ «ملي اتل»

مسلح فعالیتونه په همهغه دوره کي پیل سول ، په لغمان ، کنړ ، ننګرهار ، په مختلیفو ولسوالیو کي ، پکتیا ، پنجشېراو کابل کي موږ درژیم

پـه وړانـدي دمسـلمانانو ځوانـانو لخـوا داسـتونزي خلقـي ډلـو پـه پخپلـو ګټـو بللـې• او فکـر يـې کـاوه ،چـي پـه جمهـوري نظـام کـي داغتشـاش پيـدا کېـدل ددې لامـل کېـږي ،چـي پـه پايلـه کـي بـه پـه افغانسـتان کـي دنـادر خـان کـورنۍ دتـل لپـاره لـه واکـه لـوېږي هغـه پـه دې معنـي ،چـي پـه دې وختونـو کـي داضـطراري حالـت پـه وړانـدي دعسـکري قطعـاتو واك لـه شـاهي نظـام څخـه وجمهـوري نظـام تـه ور کـوي او دجمهـوري نظـام سـرتيري هـم دوئ خپـل ځانونـه بلـل ولوکـه محمـد داؤد خـان پـه يـوه پـاك نيـت دولسـواکۍ لپـاره دحاکميت ګام او چت کړی و.

- *ينځمه ستونزه*

دولـس عـام وګـړي ،چـي دشـاهي نظـام لـه ځينـو ځـاني غوښـتنو نـاخوښ ول او تـل بـه يـې دشـاهي کـورنۍ غـړي پـه ځـان پـالني متهمـو ل دجمهـوري نظـام پـه را منځتـه کولـو سـره ډېـره داخبـره لـه منځـه پورتـه سـوه خـو پـس لـه څـه

پـه مقابـل کـي تحريکـات پيـل کـړل ا و وسـله مـو واخيسـتله .... ((وك (( ژونـدی خاطرې )) ۲۰۳ ـ ۲۰۴ مخونه دداکټر عبدالعلي ارغنداوي اثر

•پـه دې اړنـد دکنـدهار دښـوونکو داتحـاديې رئـس عبدالاحـد ((نهضـتمل )) دافغانسـتان دملي ګوند غـړي چي مشـري يې عبدالرشيد اريـن کـوي دکندهار ازاد افغـاني را ډيو تـه د۱۳۸۵ کـال دثـور پر اوومـه نېټـه پـه يـوه ګردي ميز کي وويـل : ترکـي صـاحب بـه ويـل چي پرېږدی کـه اخوانيـان پـاڅون يـا کودتاه وکړي هم زموږ په ګټهٔ ده او که موږيې وکړو هم زموږ په کټه ده

مـودې پـه یـوه او بـل نامـه دهیـواد پـه مـر کـز او ولایـاتو کـي دخلکـو پـه وړانـدې دشـوکمارۍ ، مړینـو ، تښـتونو او نـورو مسایل و تـر ډېره زیـات هـر یـوه ناراضي ،چي بـه هـر څـه کـول هغـه بـه بیرتـه دیـوه سیاسـي سـازمان دغړیتـوب پـه درلـو دهغـه سیاسـي سـازمان دحمـایې پـه تـرخ کـي بیرتـه لـه محبس «ارتـون» ځخـه را ایلـه کېـده او کـوم لـوی جـرم بـه ،چـي کـوم سیاسـي سـازمان تـر سـره کـړ هغـه بـه دهغـه سیاسـي ګونـد پـر مخـالف اړخ تاوانېـده ؛ دزمـان خـان کـلاد ۵۰۰ تنـو نـامعلومو کسـانو دمړوجسـدونو پیدا ایښـت ، دپـلان دوزیـر •علـي احمـد خـرم مړینـي یـو لـه هغـو پېښـو وې ،چـي تـر پایـه یې په موثق ډول عاملین پیدا نه سول

---

•دعلي احمد خرم دمړیني په اړوند هارون پخپـل اثر « داؤد خـان کـا ، جي ،بي په لومو کي » لیکي چي : هغه دمعلم مرجان لخوا ووژل سو ، او معلم مرجان ته دکمونیستانو لخوا دستور ور کول سویؤ چي که ددولت لخوا ونیـول سولاست دا پېښه پر حزب اسلامي تاوان کړي چي وروسته همداسي وسول هغه « مرجان » چي ونویـل سو نو یې پر خپـل جرم اعتـراف وکړ چي ماتـه دانجنیر ګلبیدن حکتیار لخوا دستور را کول سویؤ » یاد سوي کتاب ۸۰ مخ

امـا داسـؤي بیـا نجیـب الله راهـي بیـا دا سـړي پخپـل کتـاب نجیـب پېژنئ » کي دزر جان په نوم ر را پېژني او ووایي چي « د۱۳۵۶ کـال پـه پـای کـي دپلان دوزیر علي احمد خرم وژنه چي دیـوه تـن لخوا چي زر جان نومیده تـر سره سوه دا دخلـق دیموکراتیـك ګونـد او او شـورویانو دبـدو هیلـو څرګندونـه وه » وګ نجیب پېژنئ ۶۹ مخ

- *شپږمه ستونزه*

د محمد داؤد خان درژیم په وړاندې شپږمه ستونزه دکمونیست ګوند بیا پیوستون ؤ دا پیوستون هغه وخت را منځته سو کله ،چې په ۱۳۵۶ لمریز کال دچنګابښ په میاشت کې ددې ګوند لخوا درا بلل سوي ګڼه پلینوم په پایله کې دا ګوند یو ځل بیا متحد سو او خلق او پرچم ډلې دپنځلسو ـ پنلځسو تنو په تعین ددې ګوند ومرکزي کمېټې ته ور معرفي سول دنوموړي ګوند په وحدت سره دداؤد خان درژیم په وړاندې کېنې لاسې ډلې کمونیستانو بیا پیاوړتیا وه

- **دباندنۍ ستونزې**

له روسانوسره دافغانانو دوستي:

روسانو دا سې انګېرلې وه ،چې دبې تضمینه مرستو په لړ کښې به نه یوازې دافغاني ټولني په جلب او جذب کې مرسته وکړي بلکې هغوئ به وکولای سي ،چې دخپلې دغه سخاوت مندانه مرستي په پایله کې پر افغان دولت هرڅه وتپې خو د((۱۳۵۴ )) لمریز کال دوري داوومې نېټې را په دې خوا ،چې افغان دولت په عربي اتحادیه دورګډېدو هڅه وکړه او په اقتصادي چارو کې د هغوئ دمتحدو هیوادونوله جملې په سعودي عربستان کې دهغه دولت فقید مشر ملك الفیصل دمړیني په

مراسمو دداؤد خان ګډون ددې لامل سو ،چې روسان نور خپل اطمینان له افغان دولت څخه سلب کړي دا ډېره ستونزمنه وه ،چې افغان دولت دې دباندني ملاتړ په نه لرلو سره دروسانو په وړاندې دخپلې خلاصې غېږې لاسونه پر ځګر ونیسي

جمهوري نظام دا نه وه درك كړې ،چې دتیر كال دكب پر پنځمه نېټه په كابل كې دامریكا دمتحده ایالاتو له سفارت څخه هغه اعلامیه افغان دولت ته وسپارل سوه،چي په هغه كې دپاكستان پر ضد اسلحې دبندیز پورته كولو هدف نغتښتئ ؤ او بیا ددې اعلامیې په وړاندې دافغان دولت متقابله اعلامیه دهمغې میاشتې پر شپږمه نېټه ((یوه ورځ پس)) دامریكایي سفارت مقاماتوته په كابل كې سپارلې او هغوئ كوم غوږ نوو پر ګرولئ• په دستې حالت كې دیوه قوي متحد نه درلودل او له روسانو دفاصلې نیولو د محمد داؤد خان نظام نور هم په تدریجي ډول تجریداوه خو دشوروي اتحاد سره دافغان جمهوري دولت ستونزي هغه په ښكاره را میدان ته سوې ،چې محمد داؤد خان دكیو با په عوض دچكسلواكیا په پلازمینه كې دغیر منسلكو هیوادونو په

•وګ (( کندهار مجله )) ۱۳۵۴ لمریز کال دزمري او جنګابښ ګڼهٔ ۴۱ مخ ۲ ستون

غونډه کې ګډون وکړ او دبل ځل لپاره یې دبې پرې یا دریمې نړۍ دهیوادونو دجوړېدونکې کنفرانس ځای کابل تعین سو په دې اړوند ښاغلي عبدالغفار فراهي لیکي ((دجمهور ریس محمد داؤد خان مناسبات له شوروي اتحاد سره لاډېر خراب سول ،چې دافغانستان جمهوري دولت اراده وکړه ،چې دعدم انسلاك دخارجه وزیرانو غونډې ته ددغه نهضت څخه دکیوبا دایستلو پېشنهاد وړاندې کړي دبهرنیوچارو وزارت یو مامور ماته وویل : محمدداؤد په هغه ملاقات کې ،چې له مار شال ټېټو سره یې په بلګراد کې کړی و ده ته یې ویلي و ،چې دکیوبا هیواد دشوروي اتحاد له اقمارو څخه دی او دشوروي اتحاد په غوښتنه انګولا ته نظامي قطعات استوي)) •

محمد داؤد له پرتو ستونزو څخه دخلاصون په موخه کولای سوای ،چې په هیوادکې دیوه بل اضطراري ریفرنډم له لاري ستونزې داسې حل کړي لکه څه ډول ،چې امیرحبیب الله خان دلمړۍ نړیوالي جګړې پر مهال دلویې جرګې له لاري دواك واکې او په جګړه کې دښکېلتیا او نه ښکېلتیا په موخه دولس نماینده ګانوته وسپارلې ،چې په

---

•وګ ((افغانستان دجمهوریت او دیموکراسۍ په کلونو کې)) ۲۶۴ مخ دعبدالغفار فراهي اثر

دې صورت کې به هیوادیو ځل بیا دپښنېدونکې ناورین مخه نیوله سوې وای او په موجوده عصرکې به دروسانو اوامریکایانودرقابت په تودېدو دسړې جګړې ښکارنه ګرځېدلای ددې ستونزې دمخینوي له پاره تریوه حده داسې هم کیدای سوای ،چې ددولتي ارګانو په دستګاؤکي یې دسیاسي اوایډیولوژیکي توازن ساتل مدنظر نیولي وای غیر سیاسي ملایانو،اسلامي نهضت ځوانانو،ملتپالانو، کمونیستانو اونوروته ،چې خطر ورڅخه احساسېده داسې کاري زمینه سازي کړېوای ،چې ټولوته پخپله برخه کي دمنلو وړ وای

## افغانستان دترقۍ پر لور

له شاهي نظام څخه په جمهوري نظام سره دافغاني دولت بدلېدل په ټولنه کښې نوي پدیدې په وجود را وړې ،چې دپخوا په پرتله دولس او خلکو دمنني او ستاینې وړ وې په هیواد کښې اهل کارته دکار سپارنه تر یوڅه حده پوري بشپړه سوله دنظامي ادارو پرته دجمهوري نظام په منځنۍ دوره کې دېرکارونه ترسره سول هغه طویل المدته پروژې ،چې د محمد داؤد دصدارت په وختونو کې نیمګړې پاتي وې یابشپړې او یا هم له سره ورغول سوې افغانان ،چې له ډېري مودې را په دې دکهالي اولتهۍ په بسترکي خوب وړي ول دنوي جهان په

لېدو خارجي هیوادونوته دسفرونودخارجي مالونو واردول ترډېره په افغاني بازارونو کي نوي رونق وموند اوافغاني نوو جوړو سو فابریکوهم دخپل تولید په لړ کښي دنساجي، کیمیاوي سري ، بورې اوسمینټو نوي بازار پیدا کړ.ددې سره سره له خارج څخه دوارداتي اموالو پرسرمترقي مالیې تر یوې اندازي ددولتي محصولاتو په لاس را وړولوکي دپام وړ په لاس را وړني لرلې

دهلمنداوکندوز ولایتونو دپراخو دښتواومځکو وېش، کرنیزه کچه لوړه کړله اوپرولس دمځکو وېش نورهم پسي پراخ سو یوه بله نوې پدېده ،چي دخلکو تر منځ یې دتوپیر درا ټېټولو پروسه پر مخ بېوله او محمد داؤد یې پخپله دیوه ښه زعیم په توګه مانه هغه دشاهي رژیم په شاني ولوړ رتبه دولتي چار واکوته لوړالقابو ملغاکېدل اود هغوئ لپاره په مجموع کي د«ښاغلي»په نوم داعزازي لقب نوم ورکړه، •

ددې ترڅنګ په دولتي دستګاه کي دپنځه کلنو انکشافي پلانونه طرحه اوپلي کول لویي پروژې ترکارلاندي ونیولې ،چي متاسفانه دجمهوري نظام دځوانیمرګېدوسره سم هغه بیرته یالغوه اویاله کاره ولوېدلې

•داؤد خان دکي جي بي په لومو کي ۵۹ مخ

**سقوط!**

دافغـان جمهـوري نظـام سـقوط پخپلـه پـه هغـه ورځ پيـــل ســـو،چي محمـــد داؤد خـــان دلـــويي جرګـــې لخـــوا دافغانســتان دجمهــور رئــيس پــه توګــه وګمــارل ســو. محمــد داؤد خـان ،چـي څـومره افغـان ملـت ور تـه دقـدر وړ و هغـومره يـې د هغـوئ دقـدركولو لپـاره دفكـري عمـق لـه تلـه كـار نـه اخيســت هغــه پښــتو متــل دي ،چــي واى ((هوســۍ تــه خپــل حســـن بـــلا دى)) محمـــد داؤد تـــه خپلـــه مينـــه او محبـــت داورپېلـوزي ول پـر هغـه ډېـر خوشـامندېې نـه كـاوه او دهغـه پـه زړه كـي ډېـره خوشـحالي اصـلاً دپُتېـدو نـه وه،ځكـه يـې نـو ديـوه ځيـرك سياسـت مـدار پـه توګـه نـه بلكـي ديـوه عـادي سـاده لوحـه سياسـتوال پـه توګـه پـه همغـه لمـړۍ ورځ همداترخولـه راوايسـتله ،چـي :لـه بريـژ نيـف څخـه بـه دهيـواد داسـتقلال پـه اړونـد خپلـواكي تـر لاسـه او دا بـه ور تـه جوتـوي ،چي افغانستان يو خپلواك هيواد دى

حـال دا ،چـي نومـوړي بايـد دځـان دملاتـړ لپـاره لمـړى يوبـل درونـدوزرى پيـدا كـړي تـر ځودروسـانو سـره دمخالفت پـر مهـال يـې لـه هغـه نـه ګټـه پورتـه كـړې واى لكـه پـه همـدې وختونـو كـي ،چـي انورسـادات دمصـر جمهـوريس لـه مصـر څخـه دروسـانو دلوړپـوړو سـلاكارانو دايسـتلو پـر مهـال دغربـي هيوادونـو ملاتـړ پـه داسـي حالـت كـي درلـود ،چـي پـه

یوه اړخ کې یې مصري ولس او دولت خپلواك ساتلي ؤ او له بله اړخه یې غربي او په اسلامي نړۍ کې دترکیې غوندي هیوادونه خپل کړي ول تر دې سر بېره هغه باید دامیر امان الله خان له پالیسۍ نه کار اخیستی وای ،چې یې دانګریزانو دشکست پر مهال یې له روسانوسره ددوستۍمعاهدې کولې اما زه په دې نظر نه یم ،چې محمد داؤد خان باید دغربي نړۍ په غېږ کې ځان ور اچولي وای بلکې هغه باید هم ځان خپلواك ساتلی وای او هم یې تر پرده لاندې دیوه مادي ابر قدرت ملاتړ در لودای

دلته یوازې دامریکا متحده ایالات مطرح نه وه په دا وخت کې د ،چین ، فرانسې ،انګلستان ، ایتالیا په شان دویتو حق لرونکي هیوادونه ول او یا هم دتر کیې غوندې نور هیوادونه ول ،چې ده باید داسې یو ایتلافي سیستم سره ځان جوړکړی وای تر څو ځان او خپل ځوان جمهوریت ته یې ته دبقا لاره پرانیستې پرېښې وای

دجمهوري نظام دپیل څخه یو یادوه کاله وروسته ،چې روسانو دسر دار محمد داؤد خان له هغوئ څخه دمخ اړونې په مقصدپوه سول دروسیې رسمي چارواکو دافغان دولت له کمونیستي بلاك څخه داوښتون پروسه دخپلو افغاني پلویانو په ساده استعمال سره په ډېر غور پیل اوتعقیبوله. په ښکاره بیا هم په نړیواله کچه دښه

ګاونډي توب په موخه به يې په ښه نومونو خپل دوست افغانستان باله هغوئ دا ډاډ درلود ،چې ديوه واړه ګاونډي په درلودلو سره ،چې هلته لا په نظامي او ټکنولوژيکي لحاظ يو مستحکم اقتصادلرونکۍ او پرېښوولاړ دولت وجود نه لري او نه هم ددوئ په موجوديت کې ددوئ په ګاونډ کې ويتهو حق لرونکې هيوادونو داډو جوړېدل امکان نه لري ، ناټو ته ددخول چانس نسي مساعد کېدلای.

دوئ ډاډ من ول ،چې پر افغانستان بيله دويه بل څوك کښ نسي کولای له بله اړخه روسانو دا تحليل کړيوه ،چې امريکا يان په سمه کې دخپل نفوذ مخ پر زيا تېدو نفوذ ته تېزوالی ور کوي.

دا نظر يه هغه وخت دروسانو له خولې را ووته ،چې کله دوئ له افغانانو سره دثور تر کودتا وروسته په جګړه کې ايسار• سول خو دکمونيزم په وړاندي ستونزو هغه وخت پخپل کار او فعاليت پيل وکړ ،چې داؤد خان دافغان کمونيست ګوند دپر چمې اړخ له يارانو څخه هم

•زموږ له کمزورو ځايونو نه په مهارت کار اخلي کمزوري ځايونه يعني په دغه سيمه کي دامريکا داغېزو دپياوړ تيا په وړاندي زموږ دوديز ډار او له چين سره د مخالفت وضعه مکاره ، چالاکه سياسي ديپلوماتيکي او پروپاګنډي لوبه روانه ده وګ ٣٢ــ٣٣مخ دماسکو لاس د ((ل و شيبارشين ))اثر

لاس پر سرسو او په مجموع کې دټول ګوند په وړاندي يې دتصفيې لړۍ پيل کړه اما داوخت ډېر ناوخته و.

پسله ددرو څلورو کلونو ،چې محمداؤد خان دوارسا پلوه هيوادونو پرته دنورو عربي او غربي پلوه هيوادونو په سفر ووت او بيا بيرته افغانستان ته را ستون سو نو داسلامي نهضت په عوض دکمونيستي کړيو لخوا لمړئ دخطر زنګ په کندهارکي دتم کېدو پر مهال دبرق دپرېکېدو پر ورته ودرنګول سو څو ددې سفر څخه وروسته په کابل کي تر کښته کېدو هغه ته دهغه جمهوري دستګاه دناسور ټپ او دمړيني لامل سوه

## افغانانو دجمهوري نظام ددرلودلو وړ تيا درلوده ؟

نه ،هيڅکله نه !

د ظاهر خان په دوره کي دديموکراسۍ په نوم څو اساسات پلي سوې وه ولي تر دا مهاله لادا کلمه او دهغې اړخونه په دولتي دستګاه کي دانحصار تر څنګ تر ډېره دمامورينو دنه پوهېدلو او يا دهغوئ دفردي ګټې دنه خونديتوب په خاطر په پلي کېدو کي مثبت رول درلودلی وای داسي ونه سوه

مقننــه قــوې دخپلــي ګټــي پــر محــور او سياســي ګونـدونو دخپـل نفـوذ او پـه افغانـه ټولنـه کـي دخپـل ګونـدي نفــوس دزيادښــت پربنســټ دديموکراســۍ لــه کلمــې شــعار اوچتــاوه خـو ولـس تـر اوسـه لاددیموکراسـۍ او جمهوريت پـه مفهــوم بــل ډول اتکــل کــاوه .دجمهوريــت تــر شــعار لانــدي دجمهــوري رياســت ، ملــي دفــاع وزارت او دبانــدنيو چــارو وزارت ديــوه فــرد ((محمـــدداؤد)) پـــه لاس کـــي نيونـــه ديومطلـق العنـان واکمـن پـه توګـه ځـان مطـرح کـړی و،چـي دې کړنــي ديموکراســۍ او ددې واکمــن رژيــم تــرمنځ ډ يــر واټن و.

دنظـام لـه يـوه بنسـټ څخـه وبـل بنسـټ تـه اووښـتون ددې لپـاره وي ،چـي ټولنـه ارامـه او دژوندانـه پـه سـربېرن اړخ کـي داسـي يـو تغيـر را ولـي ،چـي ټولنـه هوسـا او عقيـدتي اړخ يــې پــه اســلامي اساســاتو کــي پيــاوړي پاتــه وي پــه اداري اساسـاتو کـي لـه يـوې اداري څخـه وبلـي اداري تـه داووښـتون منځنـۍ حالـت دمـديريت تغيـر پـه نـوم را ځـي دا پـړاو خپـل ځانتـه دري پـړاوه لـري لمـړی يـې دنـوي نظـام پـر لـور دورتـګ پــر مهــال لــه زاړه درشــله دپښوســـپوکولو او وتلــو مرحلــه دوهمـه يـې دسـرګردانۍ اضـطراب او مغـزي تويـان پـه حالـت کـي دبـې سرنوشـتۍ او دريـيم پـړاو يـې دنـوي نظـام ددخـول او انګېـزې پيـل وي دا جمهــوري نظــام هــم پــه دې مفهــوم

،چې ټولنه دشاهي نظام له غلامۍ خلاصه سي تر کار لاندې نیوله سوی وو خو ددې تر څنګ هغوئ دجمهوریت دکلمې معنې دفردي خپلواکۍ په مفهوم نه بلکې په دې مفهوم کاروله ،چې جمهوریت یعنې دملت هر فرد دا که لېونۍ که پر سد بس جمهوریس او ددیموکراسۍ مفهوم یې په دې کاوه ،چې له هر نور مال حالت څخه دغیر نور مال حالت ته اووښتل ددیموکراسۍ په معنې دي جمهوري نظام هغه دسمي دخلګو پر افغانان بېخي له سده ویستل عادي افغاني کلتور په موډرن کلتور واووښت ، او دعادي افغاني کالیو په بدل په ټولنه کښې دمنیژوب پیروان ډېر سول نور داسې ډېر مثالونه سته ،چې باید یاد کړل سي .

دا ډول کلتوري اووښتونو دافغانستان دوخت رژیم ته دیو مترقي جمهوریت نوم ورکړ.

په کار داوه ،چې ددیموکراسۍ ترسرلیک لاندې دوچ جمهوریت عوض یې دافغانستان اسلامي جمهوریت اعلان کړی وای اساسات یې داکثریت ملت دعقیدتي ارادې تمثیل کړی وای اوددې سیستم په وړاندې یې دمخالفوکړیوممکنه روا غوښتنوته جواب ویلی وای نواستحکام به یې پیاوړی اوپه نړۍ کې به یې ثبات درلودای ددې ادعادثبوت لپاره موږکره مثالونه لرو ،چې

په جنوب او غربي ګاونډیو هیوادونو کې داسلامي جمهوریتونو منځته راتګ دایران اوپاکستان هیوادونو ته ترمحمدرضاشاپهلوي اوذوالفقارعلي بوټو حکمرانیو استقرارلرونکي نظامونه وروسته واکونه په لاس کې واخیستل

## که جمهوري نظام نه وای نو بیا څه کېدل ؟

دا یو ډېر تریخ حقیقت دي که ووایو ،چې زموږ ددولتي دستګاؤ په ساختار کې په غیر مستقیم ډول دهیواد دننني سیاست پلوي کسانوپه عوض ددباندنیو هیوادونووپالیسیو ته ډېرتمایل درلود حتي په هغه وخت کې دافغانستان دجمهوري رژیم ځیني مطرح کسان ول کاري اجرااتو یې دنورو دباندنیو هیوادونو دستراتېژیو یوه برخه جوړوله او دهغوئ دارادې تمثیل یې کاوه داددې ګواهي ور کوي ،چې دوخت او زمان په پړاونو کې زموږ تاریخي پېښو ښوولې ده ،چې موږ دخپلو ځانونو دخپل فکري سنجس،ملي منافعو په پرتله دنوروپه شفاهي حوالو پسې تللي یو ،دخپلې دخاوري او حریم دښمن مو پخپله نه دي پېژندلي ،زموږ دښمن موږ ته نورو را ښوولی دی ولې کله ،چې را ښوولي دښمن زموږ په قرباني له رکود سره مخ سوئ منافع نورو ته پاته سوي دي ،چې کله ددباندي استعمار تر شړولو وروسته دامیر امان الله خان واکمني

خپله دافغانانو له لاسه را چپه سوه امیر امان الله ځینې داسې اشتباهات لرل ،چې دبخښلو وړ نه ول خو اړتیا ددې وه ،چې په ملي او اسلامي سطحه ورترمیم سي ځکه امیر هم ددې ولس و او ولس هم ددې هیواد و.

داده ناسور تپ نور هلته بیا پر شوریدو سو ،چې کله دامیر امان الله خان په عوض دهغه دنامه څخه په ګټه بل چا واګې په لاس کې واخیستې دا خبره په لږ څه توپیر عیناً دداؤد خان پر جمهوریت قیاس کولای سو

که دا رژیم هم منځته نه وای راغلئ او ددې رژیم په وړاندې بیا پاځونونه نه وای سوي نو په هغه صورت کې پر ولس شاهي رژیم هم نور غمېدئ ، خو ددولت په غیر نظامي چوکاټ کې دپوهنتونو او معارف په لیکو په لمړي ځل دعبدالرحمن محمودي په مشرۍ دشعله جاوید اوپه وروسته پسې پر دې سازمان دسیاسي غلبې په ترڅ کې دجوانان مسلمان مخ پر پراخه کېدو نفوذدا ویره را ولاړوله ،چې که شغلیان دکودتاه له لارې واک ته رسېږي د ،چین له لوري به یې ملاتړ کېږي او ولس به دمسلمانوځوانانوتر شا درېږي او که سازمان جوانان دانجنیر حبیب الرحمن په مشرۍ واک ته رسېږي دلته به نو بیا ټول مخالف اړخونو ددوی په وړاندې دمخالفت لاره نیسي ،چې په دې

ټولـو صـورتونو کـې نـور پـه افغانســتان کـې سیاســي ثبـات دتزلزل پر لور روان و.

## دمحمد داؤدخان په موجودیت کې کمونیستي نظام راتلای سوای؟

دکمونیســتي افغانـانو لـه شـعارونو نـه دا جوتېدلـه ،چې بایـد مـوږ پـه افغانسـتان کـې یـو داسـي نظـام حـاکم کـړو څـو دفیـوډالي او پـانګوال سیسـتم پـه عـوض ،چـي دټـول هیـواد سـرمایه دیوڅـو کسـو پـه لاس کـې ده بایدملغاسـي څـو پـه ټـو ل ولـس کـي فـرد فـرد تـه پـه مسـاویانه ډول حـق ورسـېږي اما ددې کارلپـاره پـه افغـاني ټولنـه کـي دلاندې مـوادو پـه وړاندي کولو سره دازمینه نه وه برابره:

1. سـوچه کمونیسـتي نظـام پخپلـه دا سـي یـو تعـادل منځتـه نسـواي را وړای ،چـي دټـولني دهـر قشـر لپـاره دمننـي وړ ګـر ځېـدلئ وای هغـه پـه دې معنـي ،چـي پخپلـه پـه شـوروي اتحـاد کښـي هـم دواك دواکمنـو تـر مـنځ کمونیسـتي نورمونـه پـه پـوره ډول نـه وه عملـي سـوي هغـه پـه دې معنـي بایدپـه ټولنـه کښـي پـه سیاسـي او اقتصـادي ډول دا سـي یـو څـه پـر کـار لوېـدلي وای ،چـي دټـولني افـراد ټـول پکښـي شـامل وای حـال دا ،چـي هلتـه پخپلـه دسیاسـي واك پـړي یـوازي دګونـد دمـر کـزي کمېټـي پـه در شـل کـي را

ايسار وي ،چې پرېکړې يې پر ټول و لس تپل کېدلې ،چې دا کار دکمونيستي انقلاب په بريالیتوب کې په افغانستان کې هم نا شونئ ؤ

2. دافغانستان جغرافيايي موقعيت ودې ته نه و جوړ ،چې کمونيستي نظام پکښې حاکم سي او ددې لاري دافغانستان سياسي قلمرو دروسي شورا ګانو يو برخه وګرځي ځکه ،چې په دې وختونو دافغانستان په جنوب او لوېديځ کې پراته اسلامي هيوادونه دامريکا کلک متحد ين ول ،چې دپراخ سرحدې قلمرو په لرکښې افغانستان ته ددوئ د دخول لاره چا نسواي نيولای

3. افغاني ټولني دتوحيد دمفکوري زېږنده عقايد لرل ،چې ددې مفکورې په لرلو سره يوه دماده پرستۍ ضد ايډيولوژيکي ټولنه وه دا ايډ يو لوژي ،چې دنيکمرغۍ تر څنك له پېړيو ورته په ميراث پاته وه دانسان دعصبي سيستم په ميموريو کې دهغې پاکول او دهغې په عوض دنوي ماده پرستي مفکورې ثبت يا خو ناشونئ کار ؤ او يا خو يې ډېر کار کولو ته ،چې بايد پېړۍ يې په بر کې نويلي واى اړتيا درلوده دلته په ببړه دا کار نا ممکن ؤ ددې نه امکان په صورت کې نه يوازې افغاني عوام مخالف ول ورسره جوخت سياسي مسلمانان د هغوئ په وړاندې ګواښ ول ، بلکې پخپله په افغان

کمونیست ګوند کي ددې ګوند درهبري هیئت غړي دمیراکبر خیبر پشان ور سره نا موافق ول •

4. افغان یو قوم پالونکي• ولس ؤ ،چي ددې مفکورې لرل یې دهیواد پالني او استقلال روحیه تل ژوندي ساتله اود استقلال په لرولو سره یې هیڅ دخپلواکۍ په اړونده له ولس او سیاسي واك سره سازش نسواي کولای

دسردارمحمد داؤد شخصیت داو لسي عادي افغانانو او سیاسي کسانو په وړاندي سره له دې ،چي متفرق رنګونه لرل خو دهغه دوست او دښمن ټول په دې

---

• افغان سیاسیون لیکي چي دجمهوري نظام په دوره کښي د افغان کمونیست ګوند څخه دمیر اکبر خیبر په مشرۍ داتتقادیونو په نوم یوه ډله بیله سوله چي هغو ئ به تل اسرار کاوه، چي تر څو به افغانه ټولنه کمونیستي مفکوره سل په سلو کي نه ده پلې سوې ،که احیاناً انقلاب وسي تتیجه به یې منفي او دانقلاب نا کامي وي.

• دا مفکوره هغه وخت دتثبیت وړ وګرځېده چي افغان مېړني اولس دقومیت دقبیلویت پر لور مخه کړه او هیواد یې له بحراني حالاتو سره مخامخ سو په دې اړوند دسیمي یو خپلواك سیاست پوه او پرهیواد مین شخصیت پوهاند به تل وپخواني حالت دراګرځېدو په موخه افغانان مخاطب کول چي ((قبیلویت پرېږدۍ ،قومیت وکړي))دا معني چي پښتون ، تاجك ... غلجي دراني ... پوپلزي هو تك کاکړ ... خبري پرېږدي بلکه په یوه اواز دافغانیت کلمه پورته کړي .

باور وه ،چې هغه يو ملي ، مترقي او پر هيواد مين ځوك و ځكه نو ډير ډير دهغه دمخالفينو په شمول په دې باور دي ،چې دهيواد او افغانستان لپاره يې كار كاوه دنوموړي په ورانـدي دهغه وخت دلويي جرګې يو غړى ، دجهاد او مقاومت پر مهال دجمعيت اسلامي په ګوند پوري اړوند دجنوب لويديز زون دساحوي دفتر مرستيال ځارنوا ل منګل خان كاكړ راته وويل :

(( زما ډير ښه په يا دي هغه دجرګې له ټولو وكيلانو سره داكه دده مخالفين وه او كه ده ته خوشبين وه په يو ډول ستري مسې كوله دلويي جرګې دتدوئ ر پر مهال ،چې مشري يې كندهارى سپين ږرى عزيز الله واصفي كوله دجرګې تا لار ته راغى له ټولو غړو سره يې دلاس روغبړ وكړ او له هره يوه څخه يې دا يوه پوښتنه كوله ،چې (( چطور استي ؟ )) ((بخير آمدي )) او بيا به بل يوه ته ور تير سو خو له هغه چاسره ،چې به يې دزړه له تله روغبړ كاوه، نو بيا به يو درنګ شيبه ور سره ودريد يوه دوې پوښتني به يې ور څخه وكړې دا به يې پدا سي حال كي ور سره وكړي.

دهغه لاس به يې په لاس كي نيولى او دوه درې ځلې به يې ور وښوراوه ددې څخه با وجود دخلق دموكراتيک ګوند غړي سيد محمد ګلاب زوى هم په دې

باور دي ،چې هغه يو افغان شموله او افغانستان مين ځوك وو مترقي فكر يې درلود «مورږ دداؤد دشخصيت په اړه معلومات لرل ،چې واقعا داؤد خان و واقعي افغان و، نشنليست سړی و، نشنليست په دې معني نه ،چې دې پښتون و، بلکي دی افغان نشنليست و».

سره تر دې ،چې مورږ ددې دواړو مخالفو نظر يو له زاويو دا انګيرنه اخلو ،چې محمد داؤد خان څه ډول سړی و ددې څخه با وجود ټول هغه خلك ،چې د محمد داؤد ددورې ريفورمونه يې ليدلي او دوخت او زما ن له شرايطو سره سم افغانانو په مجموع کي ټولو ځوانانو ته دتعليم ، تربيې ، لوړو زده کړو ، او كار يابی زميني برابري کړې او دهغه دوخت ځيني اثرات تر اوسه لاتر هغه وروسته يا تو رژيمونوكي تر ستر ګي سوي ددې ګواهي ور كوي ،چې نه يوازي پر افغانستان مين ځوك وو بلکي ديوه مترقي افغانستان دجوړښت په هيله يو دده نوموړي له ترقي خوښونو کړنو څخه پنځه کلن انکشافي پلانونه وه.

## کش مکشونه

يادو سوو ستونزو ته په کتو سره دځوان جمهوريت له يوه نيم تردوو کلونو پوري دا سي څه ستونزه موجوده نه وه ،چې د محمد داؤد خان سردي په وګر ځول سي خو د محمد داؤد له موقف څخه ګتهه دپر چميانو ګتهي

،چـي خلقيانپـه تجريـد کـي پرېښـوول پـه يـوه اړخ کـي او پهـدوهم اړخ کـي دحـزب اسـلامي پـه پرتلـه دولتـي دسـتګاه تـه دکمونيسـتانوورتيروالي کـي محمـد داؤد خـان خپـل دتجريـد احسـاس وکـړ او دايـې حـس کړلـه ،چـي پـه دولتـي دسـتګاه کـي بايـد داسـي کسـان را غونـډ کـړل سـي ،چـي هغـوی خـو يـا بې پرې او يـا دده نـوي مترقـي ګونـد غـړي تـوب ولـري ځکـه نو ددې کړنـي د تـر سـره کېـدو لپـاره يـې مـوټې را ونغـاړلې خـو کـش مکـش ورځ تـر بلـې ډېرېـده او کمېـده نـه دکودتـا دتـر سـره کېـدو پـه نـوم محمـد هاشـم ميونـدوال ،چـي دديموکراسـۍ کلـك پلـوي و اعـدام سـو، پـه زمـان خـان کلاکي ۵۰۰ تنه دمړيو جسدونه پيدا سول .

تـر دې را وروسـته د۱۳۵۴ کـال دسـر طـان پـر ۱۶ نېټـه دحـزب اسـلامي دبـل غـړي مولـوي حبيـب الـرحمن اعـدام او دحـزب اسـلامي لـه سـازمانه پرتـه داسـلامي نهضـت ګونـدداخوانيانو دبرخـي دمشـر غـلام محمـد نيـازي پـر کـور چاپـه ددې لامـل سـول ،چـي محمـدداود خـان تـه دخطـر زنګونه ووهي .

ددې کـار پـه کړنـو سـره داسـلامي نهضـت رسـمي او هغـه تـه متمايـل غـړي پـه دې آنـد سـول ،چـي محمـد داؤد خـان دکمونيسـتانو پـه خولـو زمـوږ دخلکـو پـر مړينـه او اعـدام صـرفه نـه کوي،ځکـه يـې نـو ددولـت پـه وړانـدې نـور هـم سـخت

دريـځ ونيـوه پـه دې اړه دحـزب اسـلامي مشـر انجنيـر ګلبـدين حکمتيـار وايـي (( مسـلح فعاليتونـه هـم پـه همغـه دوره کـي پيـل سـول ، پـه لغمـان ، کـونړ او ننګـر هـار پـه مختلفـو ولسـواليو کي ، په پکتيا کي په پنجشير کي ، پـه کابـل کي درژيـم پـه خـلاف مـوږ تحرکـات وکـړل او وسـله مـو اخيسـتې ، مسـلحانه فعاليتونـه سـوي دي مـوږ رژيـم دې تـه مجبـور کـړ ، ځکـه هلتـه خـو قـدرت دکمونيسـتانو پـه لاس کـي و او کمونيسـتانو دا کـو دتـاددې لپـاره کـړي و ،چـي وه يـې ليـدل ، ظاهر شاه داسلامي تحريك له مخنيوي نه عا جزدی )) .

دښـاغلي حکمتيـار خبـره نـو روروسـي جنرالانـو هم تائيـد کـړې ،چـي لـه دغـو نـه جنـرال لياخوفسـکي وايـي ((خـو واك تـه دجنـرال محمـد داؤد ((سـور ))تـر رسـېدو وروسـته دځوانـو مسـلمانو پـه سـازمان کـي يـو لړاختلافونـه را منځتـه سـول او لـه سـره دډلـې ځوانـو مشـرانو کـړی لـه هغـې ډلـې نـه (( ك ،حکمتيـار ))درا نسـکورولو او دينـي دولـت دجوړولـو لپـاره دبـې ځنـډه وسـلوال پـاڅون غوښـتنه رامنځتـه کـړه)) .چـي داخوانيـانو لخـواداکړني افغـاني کمونسـتانو دخپل ځان په نفع بللې .

د((ح،د ،خ،ا)) افغانسـتان پخـواني ددريـم پـړاو غـړي عبدالاحـد نهتضـمل همـدا خبـره کـټ مـټ کـوي ،چـي (( نـور محمـد تـر کـي بـه ويـل ،چـي کـه حزب اسـلامي کودتـا وکـړي

هـم خبـره زمـوږ پـه ګټـه ده او کـه مـوږ ((خلقیـان)) کودتـا وکـړي هم خبـره زمـوږ پـه ګټـۀ ده ځکـه نـو مـوږ هـر نوښـت تـه سـتر ګـي پـر لاره يـو )) دا ټـول هغـه څـه وه ،چـي پـه دا خلـي سـطحه يـې د محمد داؤد خان له جلنج سره مخامخ کاوه .

## وروستۍ منډې تړې

سـر دار داؤد خـان دا وخـت احسـاس کړیـوه ،چـي نـور پـه دولتـي دسـتګاه او افـو زیسـونو کـي دا سـي څـوك نـه لـرم ،چـي ملاتـړ مـي وکـړي هغـه پـه دې پـوه سـويوو ،چـي دکمونیسـتانو پـه حوالـو داخوانیـانو پـه وړانـدي دده سـخت چلنـد نـه یـوازي دکمونیسـتي کړیـو پـه دننـه کـي لـه تجریـد سـره مـخ کـړي و، ور سـره ترڅنـګ هغـه پـه دې پـوه و ،چـي حـزب اسـلامي اوس پـه نـه پخـلا کېـدو نکـي افوزیسـیون اوښـتي دی، ځکـه نوارسـو،چي دحـزب اسـلامي دپخلاینـي پـه موخـه دعربـي هیوادنـو پـر لـور مخـه کـړي او لـه شـوروي اتحـاد څخـه مـخ را وګرځـوي سـره تـر دې هغـه مصـر ، سـعودي عـرب ، کویـټ ، ایـران او پـا کسـتان تـه سـفرونه ودر لودلـه،خو هغـه پـردې بـر لاسـي نسـو ،چـي داسـلامي بنسـټپالو مخـه ونیسـي هغـه پـه دې معنـي ،چـي دنومـوړي پـه وړانـدي دحـزب اسـلامي هغـه ښـاخ فعـال نـه و کـوم ،چـي ده دمصـر او اخـواني نـړۍ سـره تړلـي بلـل بلکـي دې اړخ ،چـي لـه دبانـدنۍ نـړۍ سره اړیکه نه لرل دده په وړاندي ولاړ وه.

ددې سفرونو څخه مخکې د۱۳۵۶ لمریز کال دسرطان دجشن پر مهال دهیواد په ځینو سمو کې دانجنیر حکمتیار په مشرۍ پا څون کړي وو او دهغه تر قو منده لاندې په پنجشیر کې دانجنیر مسعود نا کامه برید ټوله پا څون له ناکامۍ سره مخ کړئ و[1]

## دخطر زنګ

دنومورې سفر څخه درا ستنیدو مهال محمد داؤد خان له ایرانه هرات او له هراته کندهار ته راغلئ دنومورې هر کلې پر مهال دهغه وخت دکندهار ټول شایقین دده مخې ته ور غلې وه ولې د جلسې په لړ کې دوینا پر مهال دهغه پر لوډسپیکرونو باندې دبریښنا تلۍ او تیاره جوړیدل ددې خبر سپیناوی وو ،چې هغه دخپلې دستګاه په ولایتي ادارو کې هم دسبوتاژ سرې لرې .

[1] وړ ملي اتل له پیدا ایښته تر مرګه

## دثور کودتاه

داټکلي نظر ښتنان په دې نظر دي ،چې دمیر اکبر خیبر مړینه ددې لامل سوه ،چې دخلق دیموکراتیک ګوند غړي دخپل استاد دمړیني په ویر لاسونه په مظاهرو پوري کړي ،چې وروستی پایله دحکومت له خوا ددې ګوند دنورو رهبرانو په نیونه او دجمهوري دولت لخوا د هغوئ په ټکونه سره خبره په تاوتریخوالي واوښته کمونیستانو دخپلو رهبرانو دخلاصون په نیت پاڅون وکړ څو ،چې پایله په کودتا بدله او داؤد خان شهید سو په دې اړوند سید محمد ګلازوي•،چې ددې جریان عیني او عملي شاهداودیادګوند غړی و وایي :

((داداافغانستان پر خلق دموکراتیک ګوند باندي تحمیل سو ، ددغه لپاره کوم مخکنئ پلان نوو څکه ،چې دافغانستان دخلق دموکراتیک ګوند پر رهبري باندي یې حمله وکړه ، رهبري بندي سوه ،چې رهبري بندي سوله نو صفونو دا اقدام وکړ ،چې خپله رهبري له زندان څخه را خلاصه کړي او پدغه نتیجه کي قدرت دافغانستان دموکراتیک ګوند ته انتقال سو )).

•ګربت مجله شپږم کال پنځمه او څلرمه ګڼه ۲۹ مخ ))۱ ستون

پــه دې اړونــد دډاکتــر نجيــب الله دحکومــت ددفــاع وزيـــر جنـــرال شـــهنواز تڼـــي هـــم پـــه دې نظـــر دي خـــو دکمونيســـت ګونـد دپـر چـم ډلـي غـړي صـديق الله راهـي بيـا په دې نظر دي ،چي وايي• :

((نـــه دا کوتـــا مخکـــي پـــلان ســـوې وه )) دکودتـــا دپيښـــېدو او دخلـــق دموکراتيـــک ګونـــد دپـــلان پـــه هکلـــه نورمحمـد ترکـي دشـوروي سـفارت پـه يـوه مېلمسـتيا کـي دې تـه اړايسـتل سـوی و ددې خبـري پـه اړونـد پـه **۱۳۵۲** کـال کـي ،چـي دافغانســتان دنفــوس او شــمېرني داحصــائيې پــه هکلــه پـه سـمينار کـي (( ،چـي دهغـې پـلان پـه ۱۳۵۶ کـال کـي دداؤد دجمهوريـت پـه وخـت کـي جـوړ سـوی و )) دمرکـزي احصـائيې رئـيس عبـدالکريم رحيمـي تـه ترکـي دخلقـي کودتـاه پـلان پـه مرموز ډول دا سي ويلي و :

(( دا ســر شــمېرنه بــه هيڅکلــه تــر ســره نســي )) ،چــي دتــر کــي همــدا خبــره نومــوړي پخپلــه ديــوه پــلان پــه توګــه را څرګنــدوئ ددې خبــري تائيــد دکندهاراحمــد شــابابا دلېســې پخـــواني ســـر ښـــوونکي حـــاجي خالقـــداد ســـليم ،چـــي اوس دحضـرت ميـا عبـدالحکيم پـه طبـي پروګـرام کـي دپروګـرام منيجـر پـه توګـه دنـده تـر سـره کـوي مـا تـه وويـل : قرانملـه ! وراره ! تـه لاتـر اوسـه کشـر يـې دا خبـري تـر تـا لـوړي دي دا ؤد

•وګ ((نجيب پېژنئ )) ۷۰ مخ

خان یو ساده لوحه سړئ و هغه پر ولس مین سړي هغه خدمت کاوه اما ، حکومت چلاو دین غواړي چل او چلا ودین ،چي نه وي وړی نه شړی کېږي دثور دکوتا البوشاکه لا نه وه ۱۳۵۶ کال ژمی ؤ داددلوي لس ورځنی دیخنیو رخصتی وې معارف رخصت ؤ یو ثابت په دا هرات دروازه کي دا مخامخ رستورانټ ته ورغلم ،چي پرده مي پورته کړل دننه وار دواره تاریکه وه سم مي شي نسواي صحیح کولای درستورانت له پایه څخه دا .......ندی دازېرئ ((صالح محمد زېرئ)) شاګرد مي هم ؤ په ډېره بې اعتنایي یې ناري کړلې ! مالم اغا !! راسه ته ،چیري یې !؟ بیا یې راته وویل:

(( دا لېونئ دا..... زوی نه دی (( داؤد )) څو واره مو وړاندیز ورته وکی ،چي مورږته هم یو چوکی په دا کابینه کي راکه اما دی اوس هغه دپخوا پشان نه دي دادی ورځ په ورځ په دولتي اداروکي زموږ ګوند را تصفیه کوي دا به یې پر بده تمامه سي تې بیا سیل کوه !•))

خو دمحمد ظاهر شاه په پلوي سیاسیون بیا دثور کودتا ګڼوي اصلاً دسر دار محمداؤد څخه بولي په دې

•دا خبري یې هغه وخت ما ته وکړې کوم چي زه په ۱۳۸۳ لمریز کال کبني دبي بي فاطمهٔ الزهرا دمور او ماشوم کلینیك اداري مدیر وم

اړوند دقبرس دپروسې غړي او دفوآید عامې پښتوانۍ وزیر ډاکټر عبدالخالق فضل •بیا وایي :

«اول خو زه دثور حادثې ته انقلاب نه وایم ، زه هغه دیوې کود تا په صفت پېژنم ځکه ،چې هغه دخو نظامي اشخاصو او دهغو سره په څنګ کښې دڅو سیاسي اشخاصو یو کو دتاه بولم زما په عقیده دافغانستان عمده ستونزي دهغه وخت څخه را شروع سولې ،چې محمد داؤدخان دافغانستان دپښتوانې پاچا ،چې داکا زوی یې هم ؤ په مقابل کې یې کو دتاه وکړه او یوارام او مستقر حکومت یې واخیستی په یو نا ارامه او نا مستقر حکومت یې بدل کړي».

ځینې سیاسون بیا په دې نظر دي ،چې وایي اصلا دا دافغاني کمونیستانو تر پلان وتلې خبره وه صرف هغوئ دیوې نظامي حربې په توګه وکارول سول خو تر شایې دنورو لاس و،هغه په دې معنې ،چې ورځ تر بلې په همدې وختونو کې په پاکستان او ایران دروسانو پر ضد دامریکا په پلوي پروګرامونه او قرار دادونه بر قرارول روسانو داکارونه دځان په تاوان بلل هغوئ اړ ول ،چې په افغانستان کې یو خپل پلوي حکومت ولري اما ددوئ په

---

•زر وړانګه مجله لمړي کال لمړی ګڼه ۵۳ مخ ددوکتورعبدالخالق «فضل» سره دنور احمد قران مل مرکه

پلویانو کې دمیر اکبر پشان ډېر کمونیستان ددوئ دتوندي رویې مخالف ول او د هغوئ انقلابي خوځښت یې په افغانستان کې ناکام باله هغوئ په دې نظر ول ،چې یو ځل باید افغانانه تولنه په پوره فیصدي په کمونیستي ایډ یولوژي سمباله سي دا کار وخت غوښت او دوئ اوس اړ کړل سول ،چې باید ژر اقدام وکړي په دې اړوند دهارون په نوم یو افغان سیاستوال لاتر دې په لوړ نظردی هغه وایي ((د ۱۹۷۱ــــ۱۹۷۲ میلادي کلونو تر منځ دافغان ولس دبدبختیو اوخواریو وختونه وه.

بیا په ور پسې کال کې سخته یخني سوه دوه کاله سر پر سر باران ونسو ، هیواد سختي وچکالۍ وځپې ، کرهڼه ونه سوه لوږۀ او کاختي وه ، ..................ددې کال طبعي افت هم دکمونیستانو په ګټه ؤکمونیستان په همدې کال دانقلاب په نامه غوښتل اقدام وکړي او په دې پلمه یو کمونیستي نظام را ولي مګر څرګنده نه سوه ،چې ولي دا پلان تر ۱۹۷۳ پوري وځنډول سو ))• ددوئ اقدام ،چي هر څومره بېړني و هغومره دغرب په ګټه ځکه و،چې هغوئ دجبهه یې او اپارتېزاني جګړې په پر تله دتبلیغاتي جګړي ښه ماهرین ول او دا یې احساس کړي ول ،چې دخپلو تبلیغاتو په کمپاین دافغان له ساده لوحه

•وګ دادؤد خان دکي جي بي په لومو کي ۴۸ مخ

ولس څخه هره ګټه پورته کولای سي او خپل حریف یې پر ګونډېو کولای سو سره تردي ،چي په روان خونړي طوفان کي ځیني دعقل او شعور څښتنان دمقاومت کسان ول ،چي خپله ستراتیژي یې پخپله تعینوله او خپل مال ناموس ، عقیدې او سمې لپاره یې هرارز قرباني ور کړې په هر شکل ،چي وي وي به اوبه له جامه توي سوې او دثور کودتا تر سره سوه او پر ولس دطوفانونو سېلۍ را والوتې

دوهم لامل یې دا و ،چي دوارسا تړون دنړۍ دیوه زبر ځواك په توګه مطرح و او دسره پوځ په نوم یې دخپل قلمروڅخه دباندي ترخپل نفوذلاندي هیوادونوا پلولو ته ګوابښ متوجه کړي وو کوم ،چي دلېننګراډ له سرې ماني څخه رهبري کېدی او دهغه روسي کامن ولث ۱۶ جمهوریتونه مستقیماً ددې بلاك تر نفوذ لاندي وه دغه بلاك او ددغه بلاك په صلاحیت کي داتومي منظم توان او پیا وړي پوځ درلودل پخپله دنړیوالو لپاره یو ګوابښ احساسېدی، غربیانو غوښتل ،چي دا ځواك بایدد دا سي استعمال کړي تر څو ددوی پو ځونه په کښي را ښکېل نه سي، هغه ټکنولوژي ،چي روسانو دخپلو دیپو ګانو دننه را ایسار کړي را منځته کړي ویې پېژني او د هغوئ دخنثي کېدو لپاره نوي موډرن څه په نوي انداز را منځته

کړي ویې پېژني او هغوئ دخنثي کېدو او دغربي بلاك لپاره را تلونکی مدا فع ځواك جوړ کړي .

## دکو دتاه څخه دوې درې ورځي تر مخه ستونزي اوکړاونه

کابل ته درسېدو سره سم دمظاهرولړۍ پیل سوه دمظاهرو دپیل خبره دپرچم دسازمان دغړي میر اکبر خیبر مړینه وه ، چي دمحمدطیب ((قران یار)) له خوا په کابل کي تر سره سوه.

میر اکبر خیبر سره له دې ،چي ببرك کار مل یې پر مړینه ډېر وژړل او حفیظ الله امین څو ځلي دهمدې ورځي دمظاهرو په لړ کي دهغه دانتقام اخیستني خبره وکړه ولي اصلي دکمونیستي مفکورې ددرلودلو سره سره ،چي نوموړي سره ستونزي لرلې.

داختلاف اصلي ټکي یې دسره انقلاب را منځته کول و دوی دې ته لیواله وو ،چي په هر ګون وي انقلاب باید وسي ولي خیبر او دهغه دمفکورې لرونکي کسان ((انتقادیون)) په دې باور و ،چي تر اوسه عامه ذهنیت سل په سلو کي کمونیستي مفکوره نه ده اخیستې او لاتر اوسه ټول افغان ولس نه دی کمونیست سوی که انقلاب وسي نا کامه کېږي ځکه دنوموي مړینه له یوه اړخه په دې

ګونـدکي دیـوې مخـالفي مهـرې کمېـدل وه ورسـره ترڅنـګ دوئ تـه دکودتـا داقـدام یـوه ښـه بهانـه وه سـره تـر دې ،چـې دمیـر اکبـر خېبـر دتـرور هڅـه او دهغـې بـر لاسـي تـوب ځینـو کړیـو پخپلـه پرکارمـل یـا امـین تـاوان وه ،ولـې پـه کـره ډول دا تـورو دجوانـان مسـلمان پـر غـړي «محمـد طیـب قرانیـار» بانـدې تـاوان سـواو هغـه دې تـه اړسـو،چې پـه همـدې ورځـې کابـل پرېـږدي دنومـوړي دترورلـه املـه د افغانسـتان دخلـق موکراتیـک ګوندلـه اړخـه ،چـې دشـغله جاویـدغړي هـم ورسـره ملـه وه دمظـاهرولړۍ راپیـل سـوه څـو،چې دولـت او پـه کابـل کـې یـې موجـوده رژیـم دې تـه اړکـړ ،چـې دسـبوتاژاو ګـډوډیودمخنیوي پخاطردافغانسـتان دخلـق دموکراتیـک ګوند مشران بندیان سي

<u>د ۱۳۵۷ دثور شپږمه نېټه</u>

دنومـوړي ګونـد ټـول هغـه مشـران ،چـې بیلـه ګونـدي اړیکـو او لاربنـوونو یـې نـور نوښـت نـه درلـود دکابـل پـه نظـارت خانـه کـې تـر نظـارت لانـدي وه ولـې ددې ګونـد دنظـامي څـانګي مسـئول « حفـیظ الله امـین » لاتراوسـه نـه و بنـدي، دهغـه دنـه توقـف پـه اړونـد سـره لـه دې ،چـې دهغـه دنیـوني امـر داؤد خـان ور کـړی و، ولـې دا اشتبـاه ځینـې اخیسـتل کېـږي ،چـې ددي نیـوني طرحـه دي هـم امـین پـه مـر مـوز ډول داسـې جـوړه کـړې وي ،چـې دپلـې کېـدو دي یـې

داؤد خان ور کړئ وي ،هغه په دې اساس ،چې په یوړه اړخ کې داؤد خان جمهوریت ورسقوط کړي په دوهم اړخ دهمدې کودتاه مبتکر ځان وښوي او په دې سره دخلق ګوند بندي رهبري دخپل احسان او فعالیت تر شعاش لاندې را ولي او دا وښوي ،چې ددې پاڅون مبتکر همدی «امین» دی په هرصورت دخیبر مړینه او دنوري رهبري پلاوي بندي ګرت ځانته ډېر سوالونه لري سره تر دې ،چې په همدې ورځ دپرچم اړخ اړ وند جنرال عمرزي ،چې دکمونیست ګوند رهبرانو دتوقف په موخه دداؤد خان درژیم په پلوي منډې تړړي وهلې اودکوتاه دعلمیاتو مشرتوب یې له غاړي وو ، ولې امین یې داسارت کړی ته را کش نه کړ

<u>دثور اوومه نېټه</u>

امین له خپل کوره شخه د دپلچرخي ځلرمې زغروالي قطعي قومندان جګړن اسلم وطنجار ته دستور ور کړ ،چې دجمهوري ارګ پر استقا مت خپل تګلورئ وټاکي داقدام په لمړي سر کې اوازه دا سې وه ،چې دمظاهرو دځپلو لپاره ټانګونه ښار ته را وتلي ولي وروسته ،چې کله پر جمهوري ارګ برید وسو او دساعت برج په نښه سو نو څر ګنده سوه ،چې خبره بل ډول ده. د محمد داؤد خان په پلوي دريخشور فرقې بل قو مندان محمد

هاشــم خــان نــورزي دوطنجــار پــه لتــه قطعــات مــنظم او دبانــدي يــې را وايســتل ،خــو نــوري فرقــې پــر دې وتوانيــدلې،چې دســر دار محمــد داؤد خــان تنګــه دي وکــړي هاشـم خـان او پـه ارګ کـي سـر دار محمـد داؤد خـان پـه لمـړي سـر کـي وتوانېـدل ،چـي پـاڅون كمـزوري کړي.دخلـق دډلـي دغړي((ډګــر وال قــادر)) پــه مشــرۍ هــوايي ځــواك او پــه جمهــوري رياســت کــي مــدافع قطعــې دقومنــدان صــاحبخان تــرمنځ دســر دار محمــد داؤدخــان پــه وړانــدي دســخت مقــا ومـت پـه پايلـه کـي جمهـوري نظـام سقوط وکـړ ، محمـد داؤد خـان دخپلـي کـورنۍ دپنځلسـو غـړو •پـه شـمول داجـل ملکـي تـه لبيـك ووايـه او دتـل لپـاره يـې لـه دې نړيـه سـتر ګـي پټـې کړې

دثور اتمه نېټه

پــه همــدې ورځ ســهار تــول هغــه زنــدانيان ،چـي دکمونيسـيت ګونـد پـه رهبرۍ کـي يـې قـرار درلـوداو پـه تېــرو وروځــو کــي بنــديان ول را خوشــي او سمدســتي يــې دجمهــوري نظــام پــه عــوض ديــوې نظــامي شــورا کمېټــه حاکمــه او لــه دې لاره يــې دجمهــوري نظـام پـه عـوض دخلقـي نظام توغ اوچت کړ .

• وګ هوډ مجله ۷ مخ پرله پسې ۲۲ ګڼه

دنومـوړي اعـلان تـر څنـګ یـې دافغانسـتان دخلـق دډیمـوکرا تیـک ګونـد او دانقلابـي شـورارییس نـور محمـد ترکـي او ددې شـوري دلمـړي وزیـر مرسـتیال یـې دپـر چـم اړخ مشـر ببـرك کـار مـل اعـلان کـړل ،چې پـه دې سره دافغانسـتان پـه تـاریخ کـې نـه بلکـې دنـړۍ پـه تـاریخ کـې یـو زړه تـه نـه لوېـدونکې دا سـې پېښـه را منځتـه سـوه ،چـې دنـژدې درو لسـیزو پـه لـړۍ کـې یـې دوه پـردرې نـړۍ لـه نـاورین او نـا قرارۍ سره مخ کړه .

# دنور محمد ترکي دوره
# ۱۳۵۷ــــ۱۳۵۸ لمریزکلونه

زمادهغه ماخستن یاد•

«چاویشتلي یې زمابې غوره یاره خوب .خو ب مي ورېنه»

داد هغه غزلي نغمه ده ،چي تل ماته دکودتا ه نوم را یاد وي ډېر کوچنئ وم نژدې ځلور کلن به وم مابنام ؤ دمېز پرسریوتوره غټه ګرندېك را دیو پرته وه او ددکان• مخ ته پر دکانچه دهوارټغر دپاسه مي پلار دخپلو درنو خوږو اندېوالانو «شېراحمد احمد خان داحصائیې مامور، بابافیض محمد ،محمداسحق،معلم محمد صدیق ، حاجي محمدعلي خان او.....» سره ناست ؤ ،چي پلار مي را ډیو دسویچ په کنېکنبلو چالانه کړه او همدا نغمه خپرېدله، نغمه اوږده سوه او بیا بله دملي اتڼ نغمه پسي پیل سوه او بیا دماخستن اتو بجو خبرونو دسرود وخت را

---

• زموږ دا دوکان دکندهار ښار دپنځمي ناحیې په سیمه کي دمحمد افضل خان دسرایې وشاته دکندهار دښوونکو دروزني دعالي موسیسې « دارالمعلیمون » پر مخامخ دحاجي عبدالاحمد غزنیچي په سراي کي ؤ

غــږ بیــا هــم نغمــه اوړده اوبیــا دخبــري ســرویس دپیــل ترانــه ،چــي دغنــي خــان د« اې زمــا وطنــه ! » شــعر و؛ وځنډیــده او بیــا دخبــري ســرویس پرځــای دامــین ږغ دکابــل را ډیــو را پورتــه ســو «دزریــدارو دقــواوو جګــړن محمــد اســلم «وطنجــار» دخلقــي دیمــوکراتیکي شــوري اعلامیــه اوروي» او بیــا نــو ..... پلارمــي خپلــو ملګــرو تــه مــخ را واړاوه ویــل کودتا ده !

اې! دکوتــا کلمــه مــي ســمه نــه ســوای ادا کــولای هــر وخت بــه مي هغــه دکولتــاه پــه نــوم ویــل نــور یــې زه پــه مفهــوم نــه پــو هیــدم هماغــه و ،چــي ددې خبــر داوریــدو ســره ســم زمــوږ ددکــان در وازهبســته ســوه او دکــورو پــر لــور رهــي ســوو ســهار دکنــدهار دعــالي دارالمعلیمــین انګــړ اتنونــو نغمــو او هــورا نارو پر سر اخیستی ؤ

## ولي کودتا وسوه ؟

سیاســي تحلیلونــه کــه دعمــق ودر شــل تــه ورولــو یږي دې پــایلي تــه رســیږو ،چــي نظریــات پــر پورتــه دوو مــواردو نــه محدودیــدل، بلکــي پــه هغــه وختونــو کــي دشــوروي اتحــاد دســتراتیژۍ پــه وړانــدي نړیــوال تــر یــوې انــدازې متحــد ول هغــوئ بــه کوښښ کــاوه ،چــي روس پلــوه نظــام یــا دځــان خپــل کــړي او یــا هــم اقــلاً دغــومره خــو وکــي ،چــي دهغــه بــلاك پــه وړانــد ي دي نــړۍ یــې را وپــاوري ،چــي پــه دې ســره بــه یــا

روسیه خپل تر نفوذ لاندي سمي له لاسه ور کوي او یا به د هغوئ دتحفظ لپاره په نظامي اقدام لاس پوري کوي ،چیپه دي دواړوسره دروسیې تر نفوذ لاندي سمي یې ورتړولولې او که یې په نظامي مانور لاس پوري کاوه بیانو سمه دیوه اووږده جنګ په بڼکیل کي راتله ،چي په دي دواړو صورتو نو کي شورویان له ټکر سره مخ کېدل .

ټکر په دي معني ،چي باید سوړ جنګ دوام ومومي اونړیوال په خړو او بوکي ماهیان ونیسي دروسیې سرابڼتوب دجنوبي اسیاپر لور دتودو اوبو تر درشله ځان ور ورسوي امریکایانو ته دګواښ په معني اوامریکایانو لخوا هغوئ ته ددریمي نړۍ دخوارو ولسونو دتشویق په موخه د هغوئ پاریدنه دامریکا یوه ډېره ښه تجربه وه امریکي ته په دوهمه نړیواله جګړه کي دالمان پر سر دوېش پروسه ،چي نیم روسانو او نیم امریکایانو ته په میراث پاته سو .

په دي هیواد کي دغنیمت برخي دلندن قهر نور هم ټینګاوه اوهغه «لندن» یې دي ته واداره کاوه ،چي روسان او امریکایان سره ښکر په ښکر سي لهذا دداړو دشخړي دتیزولو لپاره یې خپل تبلیغاني کمپاین ډېر پر کار واچاوه ولې داوخت لندن له امریکې دناټو دتړون په چوکاټ کي متحد و او دنړۍ په دوه قطبي توب لاهم پله

دروسانو درنه وه ځکه په یوه دوامداره جګړه کې دروسانو را ښکېلول دهغوئ لپاره اختر وو دروسانو لپاره دا وخت دهرغلیم دچپلاخي په وړاندي جواب په چکش و.

دچکوشانه احساساتودراپارولودافغانستان دخلق دیموکراتیک ګوند استعمال او دمیر اکبر خیبر مړینه هغوئ ته پر مخ دچلاخي په معنی وه دنورمحمدتر کي دراتلګ سره بس دنړۍ دسرې جګړې مرکز افغانستان وټاکل سو.

داسیا په مرکز (افغانستان)کې ددوامپراطوري جوړوونکو پهلوانانو دډغري په اړوند افغاني کمونیستانو دا نه وه تحلیل کړې ،چې زموږ په دې پاڅون کې دچا ګټه ده ؟

ولي پاڅون کوو؟

هغوئ پوښتنه هم له ځانه ونه کړه ،چې یوازي دخو تنو مشرانو له محبس څخه درا خلاصون په موخه په داسې څه لاس پوري سي ،چې افغانستان تر ډېرو کلونو پوري شاته غورځوي؟

هغوئ داپوښتنه هم له ځانه ونه کړه ،چې ولي هر څه دنړیوالو دسیاسي او اقتصادي اهدافوپراختیالپاره قربا ني کړو؟

هغـوئ دا هـم يـاد تـه را نـه وسـتل ،چـي دهـر پيـل لپـاره انجـام سـته او هـر پيـل ،چـي پـه هـر څـومره تېـزي را منځتـه کېـږي او پراحساسـاتو بنـاکېږي هغـومره ژردعـروج تـر پولـو ځـان رسـوي او هـر څـومره ،چـي ډېـره دارتفـاع تـر نقطې ځان رسوې هغومره ژر دمځکي پر لور را ستنېږي ؟

بلکـي نـه دثـور کودتـا ،چيـانو يـا انقلابيونـو ،چـي ځينــي انقلابيونــويې لــه ډېــر ســطحي تحليــل څخــه کــار واخيسـت او پـه نـه څـه يې هم ځان او هم ملت دپرديـو دهيلـو قرباني کړ

## دشرق نابغه

ايـانور محمـد ((ترکـئ)) ددې جوګـه ؤ ،چـي انقلابـي بهير پر مخ بوزي ؟

دهـر هغـه چـا ،چـي دالهـي ور کـړي استعداد ظرفيـت دمعمــولي انســانانو تــر اســتعدادونو اضــافه وي او يــا هــم دخپـل زکـاوت پـه لـړ کـي دا سي خارقالعـادة کارونـه پـه مثبتـه لار کــي وکــاروي ،چــي دا نســانانو دســتايني اومننــي وړ وي هغـه کـس تـه دسـايکولوژئ يـا روانشناسـۍ لـه اړخـه نابغـه علامـه او يـا هـم ...، ويـل کېـږي ،چـي دنومـوړي دغـه صـفت پـه ټولنـه کـي دنـورو عـادي خلګـو پـه پرتلـه دټـولني دخلګـو دتوجـه دجلوبولـو لامـل ګرځـي مـوږ دخپلـو اسـلافو او روڼ انـدو پـه لـړ کښـي ډېـر داسـي نـا بغـه ګـان لـرو ،چـي دسياسـي ،

ایله یووژیکي او نورو تړاوونو ددرلودولو او نه درلودلو په صورت کې هغوئ ته دملي نوامسوپشان ددرناوي احساسات څرګندوو او هغوئ د هغوئ دخارق العاده کوښښونو ،چي دالله له لوري ور کول سوي ددرنښت په سترګه ګورو ، دشیخ بوعلي سینا ، ابو رویحان البیروني ، افغان سید جمال الدین ، ډاکتر عبدالغفار کاکړ ، او علامهحبیبي غوندي نور دمر کي په تاریخو دورکو نابغه ګانو یا دوني کولای سو اما دنور محمد تر کي دنبوغ ساحه یوازي دهغه دپیروانو په در شل کي پاته سوله هغوئ یا دا سي څه د خپل اقتدار په وخت کي ونه کړل ،چي ملي درناوی ولري او یا هم هغه وخت دا موقع مساعده نسوه ،چي هغه دخارق العاده عمل په کولو نابغه ثابت کړي او یا یې دنابغه توب استعداد نه درلودځکه نودوئ دخپل رهبرلپاره داسي القاب کارولي وای،چي په وروسته پسي یې ولسي سوالونو ته جواب ویلای سوای.

## ګوندي مشر توب

دافغانستان دخلق دموکراتیک ګوند په ۱۳۵۶ لمریز کال کښي دروسانو په منځګړي توب ،چي کله افغان کمونیست ګوند سره متحدسو ددې ګوند سیاسي مشردپخوا پشان نور محمد تر کي او مرستیال یې ببرك کار مل وټاکل سول ،چي ددې پیوستون په را منځته کېدو

سره ددې ګوند دوې اساسي ډلي خلق او پرچم بیرته متحدې او یوه ګډه ستراتیژي یې غوره کړله دثور کودتا درامنځته کېدو سره سم دهمدې تشکیلاتو پر بنسټ نور محمد تر کي هم دګوند دمشر او هم دخلقي دولت رهبر اوببرک کارمل دلمړي وزیراوګوندمرستیال تعین سو ،چي خلقي شوراي خپل کاري پروسیجر دهمدوئ په مشرتابه کي ترکارلاندي ونیوه.

## فرامین

دخلقي رژیم له پیله سره سم دانقلابي شورا دریس او دخلق دیموکراتیک حکومت دمشر لخوا په هیواد کي دنوي سیستم په رو کارېدولواو پخواني جمهوري رژیم دریفورمونو دملغا په موخه نژدې اووه یا اته داسي فرامین خپاره سوه ،چي دحکومت په سطحه یې بنیادي تغیرات په نخښه کول سره له دې ،چي ځیني فرامین یې دولسي اړتیاوو او کړاوونو دلیري کولو لپاره مناسب وه خو دهمدې فرامینو په پلي کولو کي دهمدې حکومت غړي ددې وړ نه وه لکه څه ډول ،چي ښایېدل ،چیهماغسي یې پلي کړي

یو له دغو څخه مځکو ویش و،ددې په عوض ،چي ددوی دلایحې مطابق خانان هم له لاسه ور کړي ثابتې شتمنۍ Fixed assists کښي څه برخه ولري، ځیني غصب

او اوپخوانیو نوکرانو یا بزګرو ته یې په لنګوټو سره دځانونو لپاره ګزاو پل کړې

## ولسي ملاتړ

دحاکم ګوند د(کور، کالي ،ډوډۍ )شعاردانقلاب تر مخه هغه خبره وه ،چې نژدې تر ډېره یې غریبې طبقې دعملي لاسته را وړلو انتظار ایسته ولې کله ،چې عملا ددې پروسې پلې کوونکي را میدان ته سول دریښتوني حقیقت پر بنسټ نه بلکې ، دخپل طبقاتي او کمونیستي مفکورې دپلي کولو په موخه یې داسي یو جریان ترکار لاندي ونیوه ،چې تر تحلیل یې احساسات پیاوړي وه خو دا احساسات داسي نه وه ،چې په یوه مثبت بنسټ کې رهبري سي دا احساسات صرف دیوې کلکي عقدې پربنسټ ولاړوو ،چې دسړولو لپاره دنور محمد ترکي دطبقې هغو پلویانو ،چې ډېر وختونه یې په ځینو محرومیتونو کي تیر کړي دا فرصت یې ځانتهیوه ښه موقع وبلله دې کړني پس له څه مودې دحکومت پرنفوذ منفي اغیزه ځکه وښندله ،چې امتیازات دیوې ځانګړې طبقې لپاره سول هغه طبقه ،چې په حاکم ګوند کي به یې غړیتوب اخیست

## ولسي مقاومت او چریکي عملیات

د محمدداؤد خان درژیم تر سقوط وروسته دمرګ تورتغر په ښکاره ډول په افغان کهول کې هوار سو او پر دې هیوادې دتوري شپې دتورتم ثپې خپرې کړې سره تردې ،چې دخلق ګوند ،چې واك یې په لاس کې ، خو په ګوند کې فردي مسؤلیت نه احساسول.

دمړینې دك،چې ګراف ډېر لوړ کړ د ((ملا ، سید ، خان)) په نوم دپر نفوذه خلګو مړیني او دفیوډال په نوم دسرمایه دارانو یر غمل نیونه ، او اخواني په نوم دانسانانو وژنه یو عام مسلك او افغاني سمه اود محبسونو در شلونه مصلخونه وګر ځېدل ، دې کارونو ددولت په وړاندې دعامه ولس غوصه را وپاروله.

په لمړي سر کې چریکي عملیات دمحدودو کسانو لخوا پیل سول ،چې وروسته دهیواد تر ګوټ ګوټ پوري یې وغځېدله او پایله یې په ملي قیام بدله سوه.

## توره بوړه او پکتیا

سره تردې ،چې ولس دخلقي کودتاه تر بریالیتوب وروسته لاپه لمړیو شپو کي ارامي وه ولي د۱۳۵۷المریز کال دثور پر ۱۰ نېټه دپکتیکا د((زېړوک)) په سمه دخالدفاروقي او او جلال اباد کي د((شهیدآدم خان

)) دجبهې دآمر شهید فضل الربي مشهور په ((زاهد ابراهیمي)) په مشریو د۱۳۵۷دثور په ۹ نېټه دخلقي حکومت په وړاندې پاڅونونه وسول یو کال وروسته دمولوي جلال الدین حقاني اود جلال آباد په توره بوره کې داروانښاد مولوي محمد یونس خالص په مشرتابه عملي پاڅونونه وسوه .

د۱۳۵۷دثور د۹نېټې یوه ورځ وړاندې دافغانستان په کوټ کوټ کې ددولت پر ضدد ((انجنیرحکمتیار)) حزب اسلامي دسازمان لخوا دپاڅون او جهاد اعلامیه دشبنامو په توسطه دامیراعتماد دانشیار ، شهید قیام الدین او ..... لخوا •خپره او ولس یې اسلامي او ملي پاڅون ته وهڅاوه دپاڅونونو دالړۍ سموسمو ته پراخه او حفیظ الله امین دحکومت دسقوط تر پایه ،چې دخلقي حکومت نژدې شل میاشتي یې په برکي نیولې ۴۰ځلې پاڅونونه وسول.

یو په بل پسې داروزګان ، کشم ، او خاکرېز ولسوالیو سقوط وکړ په هرات •کې عمومي پا څون ته

---

•وګ ((جنګ افغانستان وشوروي )) ۷۷مخ

•که څه هم دهرات دپاڅون په اړوند په ځینې ګوندي کړیو دا مسئله دخپل کارکردګی پر محور را څرخولې او په دې اړخ کې په هرات کې دجمعیت اسلامي وتلي قومندان تورن محمد اسماعیل ته منصوببږي او پاڅون دلوبغاړې

زمینـه سـازي وسـوله   دنـور محمـد ترکـي درژیـم او دهغـه دبـې تجربـې ځوانـانو دکـاري اهلیـت دنـه درلودلـو ددې تـر څنګ ګونـدي سـختو شـرایطو ،چـي ټولني لـه عنعنـاتو سـره یـې پـه دي وخـت کـي سـرنه خـوړ نـوري سـتونزي هـم پسـي را ولاړې

---

یـې جمعیـت اسـلامي بلـل کېـږي حـال داچـي دا وخـت لادجمعیـت اسـاس نـه و ایښـودل سـوی  دپاخون کوونکـو رهبـري داخوانیـانو پـه نـوم حـزب اسـلامي تـه منسوبېدله  ددې خبرې دادعـا دثبوت لپـاره د کـار مـل ددورې دجامعـه شانسـي مضمون په روایت  ددې پاخون تر شا دنومـوړي سـازمان لاس وو پـه دې اړ ونـد لـه نومـوړي کتـاب څخـه یـو مـتن دې چـي وایـي ((انهـا میخواسـتند ابتـدا در شـهر هرات بعـدا در کابـل شـورش مسـلحانه را بـر یـا کنـد شـورش شـهر هـرات باعمـال وحشیانه اې توام بـود کـه در جریـان یکتعـداد زیـادي از فعـالین حزبـي رهبـران ار ګانهـا ....... بـه شـهادت رسـیدند شورشـیان در حالکـه چنـد روز قـدرت در شـهر هـرات بدسـت د اشـت ...... سـازمان ارتجـاعي وفـراري بـه اصـطلاح ((اخـوان المسـلین)) کـه خـود را نـام حـزب اسـلامي را یـاد مـي کنـد ، دریـن امـر جـدیت وفعالیـت بـه خصـوص از خـود نشـان داد)) وګ جامعـه شناسـي سوسیالیسـتي ۱۳۴ مخ .

دا چي دهرات پاخون به دچا کـار نامـه وي پـر ځـایې پرېږدو ،خـو ددې ورځي دپاخون لمړی ټك یوه کندهاري عسکر چي په مامور علي جـان یـې شـهرت درلود او کندهار دشنه ارغند دسوخ چالا((شیخ چالاک)) دسیمي  دحاجي محمـد ابراهیم خان توخي زوی ؤ چي وروسته  دروسي یرغل پـر مهـال پـه خـاکرېز کـي پـه شـهادت ورسـېد تـر سـره سـو .پټـه دې نـوي چـي دثـور دبحـراني جریـان او روسـانو دمقاومت په وړاندي دنوموړي مامور علي جـان د کـور دوو لـس تنـه نـور ځـوا نـان یو په بل پسـې  دجګړییزو عملیاتو په ترڅ کي په شهادت رسـېدلي دي .زمـا قـران مل شخصي یادښت دنوموړي  دکورنۍ له غړو څخه .

سوې نه یوازې دهرات ولایت عمومي پاڅون بلکې ور سره جوخت دکابل په شور بازار او ... کې ولسي پاڅون او له هغوئ سره ددولتي پو لیسو پیوستون نور هم ولس ته دپاڅون زمینه برابره کړه.

## په واکوال نظام کې خپل منځي شخړې

سره دې ،چیدروسانو له اړخه څخه ددې ګوند یووالی را منځته سو،خو بیا هم تر پردې لاندې په دې ګوندکي سیاسي اختلاف موجود ؤ خو ددې اختلاف مهرې پخوانۍ نور محمد ترکي او ببرك کارمل نه ول ،بلکې دلته په دې وختونو کې دترکي په عوض دکار مل په وړاندې داختلاف مهره امین بلل کېده او دامین موجودیت په ګوند کې دننه کار مل ته لویه ستونزه وه ،امین په ګوندي اصولو کې دترکي پشان ساده لوحه نه و، بلکې هغه دفزیك دیوه ډاکټر په توګه دتغیراتو په اووښتون کې دفزیکي ستراتېژیو ښه ماهر بلل کېده له بله پلوه تر کې ته بس د ددوئ دیوه مشر په توګه یوازې حمکراني مطرح وه او په نامه ګوندي مشر توب و. نور هغه دا نسواې تحلیولای ،چې دده په ګوندکي دده مهربان غړې دده دثور کودتا پایله دکوم متزلزل جریان پر لور بیا یې ددې تر څنګ دپر چم ګوند پلویان په دې خوښ وه ،چې دتر کي په دوره کې باید داسې څه تر سره سي څو ددوئ

دحکمرانـي لپـاره ښـه زمینـه بـرا بـره کـړي امـا دامـین پـه موجودیـت کـي بیـا هـم ددوئ واکنیونـه پـه هغـه وخـت کـي ناشونې وه .

کلـه ،چـي دامـین حکومـت دروسـانو لـه لاسـه پرېـووت، دهغـه ډلـه یـې لـه واکـه لیـري او رسـما یـې دافغانسـتان پـه سیاسـي چـارو کـي مداخلـه وکـړه، دافغانسـتان پـر حـریم یـې یرغـل وکـړ او دافغـاني قلمـرو سیاسـي ازادي او جغرافیـایي قلمـرو یـې لـم غـوتۍ یرغمـل ونیـاوه او دخلقـي اداري پـه عـوض یـې ببـرك کـار مـل واك تـه ورسـاوه دببـرك کـار مـل پـه مشـرۍ دپـرچم ډلـي حکمرانـي ،چـي ازادو سیاسـت والـو لـه یـوه لاس څخـه وبـل لاس تـه دپردیـو پـه توسـط دحکمرانـۍ اووښـتل وبلـل امـا دببـرك کـار مـل ، دهغـه پلویـانو اوهغـه خلقیـان ،چـي دامـین لـه لاسـه پـه تنـګ ول دکـار مـل پلویـان پاتـه سـول ،چـي دځـان پـه ګټـه یـې لـه امـین څخـه دخلاصـون یـو مثبـت حرکـت بالـه پرچمیـانو دامـین دحکومـت سـقوط دروسـانو دتـداخل پـه نامـه نـه ،بلکـي دخپـل سیاسـي نوښـت پـه نـوم وبالـه او نړیوالـو تـه دا وینـا کولـه ،چـي امـین پخپلـه دثـور انقـلاب لپـاره ضـد عناصـر او دخلقـي دولـت ضـد لهـذا اړتیـا وه ،چـي بایـد پـه ګونـد کـي داصـلاحاتو درا وسـتو لپارهپـه دبانـدي کـي تصـفیه تـر سـره سي.

د۱۳۵۸ لمریز کال دسنبلې په میاشت کې ،چې کله امین واك ته ورسېد ددولت په چوکاټ کې په ښکاره میدان ډېر ورته صفا ؤ دپرچمیانو لوړ رتبه چار واکي په خارجي هیوادونو کې دسفیرانو په توګه مقرر ول یا یې مسکو ته پناه وړې وه او یا په داخل دمملکت کښې دامین دڅارګري شبکې (( کام )) تر څارني لاندي دپر چمیانو پشان دنور محمد تر کي خلقي ډله،چې مخکې یې امین ته ((دصبح دم قو مندان ))•لقب ور کاوه اوس ور سره په ټکر او دوئ دنورو ښئ لاسو مخالفینو تر څارني لاندي ول.

## له شاګرده څخه ستونزي

دامین ماهرانه کرکټر دتر کي پر زړه داسي اثر غور ځولې ،چې خپله تر کي دامین او دده ((ترکي)) مثال دنوك او اوري پشان یادوه او یا به یې دوفادار شاګرد په نوم هغه ته دګرانښت خطاب کاوه خو په وروسته کې په ګوند کې

• پر دې اساس چې امین دثور دکودتاه دپیل پر مهال دخلق دیموکراتیك ګوند دنظامي کمېټې مشر تابه پر غاړه لرله او په هغه ورځ چې نوموړي دانجنیر ظریف په توسط له خپله کوره نظامي افسرانو ته دپاځون قومنده ور کوله ددې ګوند لوړ رتبه اووه تنه مشران دکابل په نظارت خانه کې دداؤد درژیم لخوا په توقیف کې ول پر دې بنسټ چې کو دتاه سهاري مهال را پیل سوه لهذاد ((صبح دم قومندان)) لقب یې امین ته ور کړ او دهغه یې ددوئ په اصطلاح ددې نوي ابتکار مبتکر وباله لیکوال

دامین خپل سري تر دې حده ورسېده ،چې نه یوازې پر چمیان یې پر خلاف سول بلکې پخپله په ګوند کې دخلق ډلې هغه صاحبمنصبان او لوړ رتبه چارواکې ،چې دثور کودتا پر مهال دده په قومانده وه،په وړاندې یې لاس په پاڅون پوري کړی وو او س دده خلاف ول دنومورې له دسیسو به یې ترکې خبراوه دترکې دا شکونه هغه وخت په یقین واووښتل ،چې کله نومورې دکیوبا څخه درا ستنښت پر مهال په روسیه کې تم سو اوبیا له شوروي اتحاد څخه دترکې درا ستنښت او په مسکو کې دترکې او کار مل تر منځه جوړې امین نور ودې ته ودراوه ،چې په ګوند کې دا سې یو څه وکړي ،چې دسیاست محور یې دده « امین » پر محور را وګرځي امین ته دکوتا کولو بهانه هغه وخت جوړه کړه ،چې په جمهوري ارګ کې دتر کې لخوا هغه ته دمرګ دسیسه جوړه سوه ،چې په پایله کې یې دده په عوض سید داود تړون [•]،چې ځینې خلګ یې دافغان هنر مند احمد ظاهر قاتل بولي له منځه ولاړ.[2]

وروسته ددې اختلافې ټکې دله منځته وړلو په موخه په ښکاره دروسیې دسفارت له لوري دواړو « تر کې او

---

• وګ « داؤد خان دکې جي بي » په لومو کې » ۱۱۹ مخ

[2] خو ځینې کسان داحمد ظاهر په ترور کې داود تړون نه بلکې دحفیظ الله امین دوراره عبدالله لاس بولي .

امـین)) تـه مېلمسـتیا تـر تیـب سـوه څـو پـه ښـکاره ډول ددوئ تـر مـنځ جـوړه وکـړي ولـي پـه پټـه کـي پخپـل روسـان هـم پـه دې خوښ نـه ،چـي ددوئ تـر مـنځ دي جوړوسـي هغـه پـه دې معنـي دتـر کـي او امـین تـرمنځ جـوړه دپـرچم دډلـي پـه تجریـد پـه معنـي وو.

پـه بـل اړخ کـي روسـان داوخـت پـوه ول ،چـي ددوئ تـر مـنځ جـوړه ځکـه ناممکنـه ده ،چـي دامـین لخـوا دترکـي دڅـار پـه موخـه دهغـه پیـاوړي ملګـرئ سـیدداؤد تـړون ،چیـدترکي سـریاور و دهمـدې ترکـي لخـوا لـه منځـه تللـی واو دنومـوړي مړینـه خپلـه ترکـي تـه دیـوه سـرخوږي پـه توګـه پاتـه ستونزه وه.

ددې خبـري ثبـوت دخلـق دیموکراتیـک ګونـد دمشـرنورمحمدترکي پـه هغـه وروسـتي لیـک کـي لولـو ،چـي د۱۹۷۹کـال ددسـامبر پـه ماپښـین یـې خپـل یـوه پلـوي ((شـاګرد))اکبري تـه لیږلـئ و((زه بـې وسـه یـم ، واک نـه لـرم اونـه سـم کـولای اړیـن ګامونـه پورتـه کـړم زه دشـوروي اتحـاد دپښـې پـه راوړانـدي کولـو ژغـورل کېـدای سـم خوځرګنـده ده ،چـي شـوروي ملګـري بـه مـا ونـه ژغـوري ځکـه هغـوئ بایـد دامریکـا غبرګـون پـه پـام کـي ونیسـي ،زه دزړه لـه کـومي ګونـد او ولـس تـه پالیالـه وم.ګرانـه زویـه ! کـه موبیـا ونـه لیـدل نو(دخدای په امان).

## دحفیظ الله ((امین)) رژیم

## ۱۳۵۸لمریزکال

دامین اوترکي تر منځ اختلاف له روسیې څخه ورو ورو سته څرګند پدو دواړه سپیني خبري ته ودرېدل په ګوند کي دننه دترکي خپلواکو کړنو دامین تر پردې لاندي پلان وربطي کاوه په دې اړوند ښاغلي هارون لیکي (( هغوئ پخپل منځ کي هم هیڅ ډول معیار او بشري اړښتونو ته ونه کتل ، دواکمنی دګټلو لپاره هر څه ته چمتو وه د۱۹۷۹ کال دپیل نه استاد او شاګرد یو او بل ته په زړه کي اختلافونه ورو ورو را څرګند پدل؛ بالاخره اختلافونه ورځ په ورځ ډېر سول ،حفیظ الله امین دځانګړي واکمنی د تر لاسه کولو لپاره په ظاهرکي دترکي سپین ږري توب پلمه کاوه مګر په حقیقت کي دهغه له سادګی نه په عذا ب ؤ)) • دامین واك ته درسېدو سره سم په هیواد کي بیا هم دغمیزو په لړی کي کوم تغیر را نغی خپلمنځي حزبي مخالفتونه ، تعذیبونه او مقاومتونه روان ول.

• و ګ ((داؤد خان دکي جي بي په لو مو کي)) ۱۱۷ مخ

## د۱۲زروتنو اعدامیانو دلیست خپرېدل •

دحفیظ الله امین واک ته په رسېدو ،چې دخلقي حکومت لخوا ۱۲زره تنه دهیواد پوه طبقه اعدام سوي وه په وزارت داخله کي يې لست خپور سو ،چې له جملې ۳۹تنه داکابل پوهنتون کدري غړي پروفیسوران ،ماستران ،ډاکټران اودلسانس ډګري لرونکي ،ورسره تر ځنګ دپرچم دډلي ۴۷۰۰تنه غړي ول[3] دپورته ډګريولرونکي کسانو تر څنګ د۱۴ پاسو او ۱۲ پاسوروشنفکرانو۱۲۷تنه ،چې دسازمان جوانان مسلمان سره دتړاو په طور په دې لیست کي شامل ول په شهادت ورسېدل یا مړه سول.

## ښکاره تغیرات

امین دخپل رژیم دواکنمۍ پر مهال په خپل خطابو کي دثور دکوتا له پیله دملت په وړاندي را پيل سوي کړاوونه دځینو کودتا ،چیانو اشتباهات بلل او ژمن ؤ ،چې د هغوئ دمخنیوي لپاره ورځ په ورځ لاس پر کارروان او دده په اصطلاح يې شعار ورکاوه ،چې په دولت کي تصفیه روانه ده او دځینو اصلاحات منځ ته

• وګ ((جنګ افغانستان وشوروي عامل پروفاشي جهان کمونیزم))

[3] جنرال عبدالواحد طاقت په وینا ((دطلوع ټلویزیون ګردی مېز))

راتلې سوى ددې اصلاحاتو لړۍ هم په مطبوعاتو او رسنیو کې دتوازن بر قرار والئ بنودل کېدى په دې پر مختلې کې نه یوازې سوسیالیتي افکار ، سر یالونه ، فلمونه او نور تمثیلونه دمطبوعاتو او رسینو له لارې خپرېدل بلکې ور سره تر ځنلې غربي کلتور او ګاونډیو هیوادونو کوم څه هم ددوئ درسنیو دپالیسي پر معیار بر ابر سول ددې تر څنلې په لمړي ځل په هیواد کې داکثریت ولس په ژبه دپښتني کلچر هغه حق چې تر ډېره تر پښو لاندې ؤ په بل اړخ دامیر شیرعلي خان ددورې دممثل ریفورم تمثال دهغه په دوره کې په لړه سلنه دیادوني وړ برېښي .

ددې تر څنلې په سیاسي ډګرکې یوازې دهغه دسیاسي ډلي تپلي روى کار کول هدف ته درسېدو لپاره دامین سترا تیژي ددې وړ وه ،چې د خلګو توجه ځانته ور جلب کړي خو هغه درد ،چې له ولس سره ؤ دامین کړنو نسواي جبرانولای او ددې درد پر زخمونو لا غربي کړیو نوري مالګي ور پاشلې او خپلو حریفانو کمونیستي بلاك په وړاندې دافغانانو مقاومت دځان دخلاصون او دحریف دماتي پیلامه بلله.

## د باندني هیوادونه او دامین رژیم

دترکي تر مړینې وروسته دروسیې ددولت لخوا هغه دنوي رژیم اودهغه نوي رئیس په نوم امین ته مبارکي وویله او هغه یې دافغانستان دنوي واکمن او دخلق ددموکراتیک ګوند دنوي رهبر په توګه ومانه حفیظ الله امین •دخپلې واکمنۍ په لړ کښې دیوه بارکتړ په توګه دامیبیازیس سیاست پلي کړیؤ دخپل دولتي نظام داستحکام لپاره یې دنړۍ دواړو مادي ستروځواکونو واکمنیو ته ددوستۍ لاس ور اوږد کړ •هغه سره له دې

---

• دامین دوه لیکل سوي اثره (( دبر یالیتوب را ز )) او (( انقلابي لار)) که څوك ولولي او دپورژوازۍ په وړاندي که دهغه لیکني سرځ ولولي نو بیا به سړي متیقین وي چي افغان ستالین پخپله امین ؤ او په دې کي شك نسته چي ثور انقلاب په را وستو کي که امین کلیدي رول نه در لوداي نو ددې احتمال ؤ چي دثور کودتاه دي دتښي دکودتاه په شان له ناکامۍ سره مخ سي ، خو که دحکمرانۍ جریان یې څېړل سي نو دده خپلواکي یو بې ځایه کار بلل کېده او یا داچه په ښکاره به یې دا مخ پر ایښیۍ ؤ امین د شهنشاه محمود ، شا زمان ، امیر شېرعلي خان ، امیر امان الله خان ، او محمد داؤد خان له خپلواکي توب څخه هم دادرس نه واخیستی چي نه به یې څوك کار ته پرېږدي او نه به دچا څخه کار پر مخ بوزي سره تر دې چي امین له نومورو سره نه سي مقایسه کېدلای هغه په دې معنې چي دنومورې افغاني واکمنان دیوې خپلواکي مسلماني او افغاني فکري تیوري څښتنان ول او دده فکر بل شانته ؤ لیکوال

•وګورئ :دحفیظ الله امین اثر دبریالیتوب راز

،چې دمحمد ظاهر خان ددولت په وړاندې دپاڅونیانو یوه مهره بلل کېده اما دخپل واك په دوره کې یې بیرته اړ ؤ ،چې دتوازن دبرقرارولو لپاره بیرته دمحمد ظاهر خان پالیسي دخپلو دولتي اساساتو په لړ کې پلي کړي ،چې هم غربیان او شرقیان دواړه په موزون ډول سره وساتي مګر دا وخت له هغه وخت له اړیکو سره ډېر توپیر درلود ، په هغو شپو کې افغاني ټولني یوملي پرشاهي ستنو دولت ولاړ درلود .

که څه هم داوخت دجمهوري دموکراتیک په نوم دولت موجود ؤ خو دترکي ددورې څخه په میراث ددې هیوادسیاسي اودبانډنۍ سیاسي پروسه پر کمونیستي اوسوسیالیستي نورمونو ولاړه وه دې پالیسي دهغه دارژیم ته نجات نه سوای ور کولای .

دځینوسیاسیونو دنظریاتوپر بنسټ امین غوښتل ،چې دملي قوت پر ستونو ولاړ یو خلقي دموکراتیک دولت را منځته کړي ،چې ستراتېژي او قانون ګذاري یې کمونیستي وي خو رهبري دروسي رهبرانوله جوغه ګوښه او په دې سره دپخوانۍ ؛چکسلواکیې دمشر چایسیسکو ، کیوبا دمشر فډرالکاسترو او دعراق دمشرصدام حسین پشان یې کمونیستي دولت یې دملي حاکمیت په فورم کې غوښته حال دا ،چې په موقعیتي

لحاظ افغانستان او چکسلواکیې او ...هیوادونو په پرتله تر یوې اندازې توپیردرلود .

افغانستان دمنځنۍ اسیا ټولو هیوادونوته ددروازې شکل درلود دې کارته که دوخت ډېر سیاسون خوښبین ول او امین یې دیوه افغان کمونیست په توګه باله خو پر چم پلوه کمونیستانو هغه دفاشیست په نوم باله او دوئ به ویل ،چې امین په کمونیزم کې دهټلري نظریاتو څښتن دي ددې سره سره ،چې نومړي دروسانو سره پیوست ملګري له هر ځومره چالاکۍ کار اخیستی هر څومره دخپل استقلالیت په ثابتولو سره دکمونیستي او کاپیتلیستي هیوادونو څخه په ښکاره دمرستي غوښتل ول .

ور سره تر څنګ یې څو ځلي تر پرده لاندي دامریکانو څخه خپل دژغورنې په ملحوظ دمرستو غوښتني وکړې خو دهغه دې ملاقاتونو کومه پایله ور نه کړه تر هغه زیات پورته یادو سوو دوو بلاکونو استخباراتي شبکې (( کې جي بي )) او (( سي آي اې )) ډېري فعالي وې ،چې دامین ټوله څه یې له نژدې ځارل روسانوته دامین د ریاست دوره اړینه ؤ خودکمونیستي انقلاب دساتني په موخه یې په ډېر څه په افغانستان کې خپل درا منځته سوي رژیم له منځه تلل نه خوښول او

ددوئ دپلـوي واكـدار رژیـم سـقوط یـې خپـل ركـود بالـه امریكایانو هم نه غوښتل ،چي په نه څه په داسي جال كي را ګیر سي ،چي په نیغه له روسانو سره ټكر وكړي ،چي لا ډېر ورته وختي ؤ كمونیستي بلاك جوړ او له هره اړخه مجهز بلل كېده ولي امریكایان دروسانو غوندي په سمه كي دیوه ټاكلي محوطې لرونكي امپراطورۍ څښتنان نه ول هغې یوازي دپاكستان هیواد له سیاسي همږغي توب دروسانو په وړاندي داوبو خړولو كار تر سره كاوه یا به دا لامل ؤ ،چي امین ته امریكایانو لاس نه ور كاوه او یا به یې په امین باور نه در لود .

دامین په اړوند دهغه دكړانده سیاسي پروسیجر په اړ وند بیا ځیني سیاسیون په دې نظر دي ،چي امین كمونیست نه ،بلكي هغه خپله دامپیریالیزم یوه سیاسي مهره وه،چي دروسانو په را منځته كولو كي یې لوي رول ولوباوه ددې دواړو قوتونو په لړ كي را ایسار امین تر منډو تررو وروسته تجرید سو ،چي وروسته یې له خوارځواكیه دپاكستان هیواد ګریوانه ته ددوستۍ لاس ور اوږد كړ .

## دكودتاه ګانو هیرو

له خلق دپرچم ،ستم ملي دګوندونوبېلوالی ، په دریم پړاوه كي په ګوند كي دډاكټر محمد كریم زرغون

مړینه، په څلرم پړاو کې دانتقادیونو شړل ، په پنځم پړاو کې داکبرخیبر مړینه ، په شپږم پړاو کې دترکي دمشرتابه په دوران کې دکارمل په پلوي دپرچمیانوټکول او خارجي هیوادونو ته دهغوئ شړل او په اووم پړاو کې بلاخره پر خپلاستاد ترکي باندي دهغه برید ټول هغه څه وه ،چي په ګوند کي ټولو ناراضیانو دامین پر غاړه پړه ور اچوله او همدا دی یې په یوه اړخ کې دګوند ټوټه کوونکی باله زماپتمن پلار حاجي عبدالحمید کاکړ ،چي داسلامي ګوند په غړیتوب یې دوخت معاصر سیاست او دهیواد اوضاع له نژدې څارله ما لیکوال ته وویله :

((امین دخدای پرتوره ترخه یو هم نه پرېښاوه نه یې اخوانیان پرېښوول او نه یې نور،ددوی دګوند په وړاندي ،چي کومي ستونزي رامنځته سوې ؛ډېرو ګوندي غړو یې پړه دده پرغاړه ور اچوله او هغه یې مکار امین یا ((امین میرغضب)) باله ))

دي پورته یادو سوو کړنو په ګوند کي دهغه پلویانو هغه ته دګوند تصفیې دهیرو لقب وکړی و.دې کړنو هغه له انتقام امیزه کړنو سره مخ کړ،کله یې افغانه واکمني پرغاړه واخیسته هماغه و ،چي دتېرو یادو سوو کړنو په دام کي پخپله را ګیر سو ،چیښله خپل کاري ټیم څخه نورهیڅوک نه وه ور پاتي.

# ایډیالیست،فاشیست ،کمونیست که امپیریالیست امين ؟

پـر چميـانو ،چـي كلـه واك تـر لاسـه كـړ هغـوی ادعـا وكـړه ،چـي امـين نـور هيـواد دتـوري ارتجـاع پـه خولـه كـي وركـاوه او داخوانيـانو سـره يـې سـازش كـاوه هغـوئ پـه دې اړونـد وايـي (( همچنـان مطـابق بـه نقشـه وفيصـله ارتجـاع ، امپيريـاليزم ونماينـده گـان شـان چنـين تصـميم گرفتـه شـده بـود كـه دفعتـاً بعـد از كودتـا از تمـام دسـتاورد ها وشـعار ها ي كـه انقـلاب ثـور پـيش كشـيده بـود بطـور قـاطع وجـدي انحــراف صــورت گرفتــه وحــزب دموكراتيــك خلــق افغانسـتان بـراي ابـد محـوه ونابودشـود در پـلان بـه اصـطلاح (( دولـت جديـد افغانسـتان ))اجنـت سـر سـپرده سـيا يعني امـين بمقـام رياسـت جمهـوري ، گلبـدين حكمتيـار صـدر اعظم ، ومحمد يعقوب به حيث وزير دفاع تعين گر دد )) •

پـه دې اړونـد نـور و عـامو سياسـت والـو هـم ورتـه نظـر درلـود وروسـته بيـا تـر پايـه دا سـي موثـق اسـنادرا منځتـه نسـول ،چـي پـر نومـوړي ائـتلاف دي تـكي پـر تـكي رڼـا واچـوي دحـزب اسـلامي مقامـاتو هـم ددې خبـري څخـه انكـار

---

• دكارمل درژيم دمتوسطي تعليمي دورې تعليمي كتـاب (( جامعـه شناسي )) ۱۳۷ مخ

کـاوه پـه دې اړونـد ددې ګونـد دمنځنـۍ ك،چـي يـو غـړي قومنـدان حـاجي اسـد الله ((محمـد شـفيق)) وايـي ،چي((پـه هغـو شـپو کـي ګونـد ي پريکـړي منظمـي وې،ځکـه ،چـي مـوږ ديـوې جبهـې پـه وړانـدي مقاومـت کـاوه،چي هغـه دخلـق دموکراتيـک ګونـد رژيـم ؤ زمانـه پـه يـادېږي ،چـي داکـار دي تـر سره سـويوي ځکـه ،چـي زمـوږ رهبـري پـه هغـه شـپوکي ډېـره فعالـه وه اوخبـره بـه ژر پـه تنظـيم کـي خپرېدله))کـه دپـر چـم سـازمان دپورتـه جملاتوځرګنـدوني ومنـل سـي نـو پايلـه بـه لـه دوو خبروخـالي نـه وي هغـه پـه دې معنـي ،چـي امـين پـه هغـه وخـت کـي دولسـي مقاومـت دمشـرتوب دخښـتن حکمتيـار پـه شـان بـل لـوی رقيـب نـه درلـود او پـه جـال کـي دهغـه درا ګيرولولاربـه يـې ترټولـو همـدا غـوره سـنجولې وي ،چـي خپـل رقيـب يـو ځـل را منځتـه او بيـايې پخپـل سـر نوشـت پسـي واسـتوي يـا بـه دا سـي ؤ ،چـي امـين نـور هغـه دپخـوا امـين نـه وو هغـه بـه پخپلـه سـتراتيژي کـي تغيـر را وسـتی و او ددې لاري بـه يـې ملـت تـه ځـان ور نـژدې کـاوه دوخـت ديـوه ځـوان سياسـتوال پـه توګـه دحکمتيـار خطاايسـتنه هـم ډېـره مشـکله وه ،چي دامين په لومه کي را ګير سويوای.

پـه دې اړونـد داؤد خـان دKGB پـه لـو مـو کـي ليکـوال وايـي ((امـين هڅـه وکـړه کـه اقـلاً ديوشـمېر مجاهـدينو سـره لاړ واخلـي ، دانجنيـر ګلبـدين حکمتيـار

اتلس کلن ورور پلار او تره یې بندیان کړل ،چیهغه وسولي ته اړ کړي،څنګه ،چي داونه سوه هغه ټول یې شهیدان کړل » ، سره له دې ،چي پرچمیانو هغه په دې تورونو تورن کړې ؤ ډېر سیاست وال په دې نظر دي ،چي امین افغانستان ته دروسانو دراتلو په ارتباط کومه پرېکړه نه ده کړې خو ددې خبري په وړاندې دروسي قومندان « بوریس ګروموف » خبرهکه را وړاندې کړو نو بیا خو امین دترکي په شپو کي هم روسانو ته دراتلو بلنه ور کړې وه.

تر دې وړاندې له امریکایانو هم دامین غوښتنه دښاغلي هارون له نظره ،چي وایي « امین ځانګړي واکمن سو ، تر ټولو لمړئ یې دارلو دتوطیې په تور له کابله دروسیې سفارت دغړي ابلوف او روسي سفیر فوزانوف دایستلو غوښتنه وکړه....ځیني سیاسیون په دې نظر دي ،چي دامین نیشنالیستي او فکري ازادي دروسانو خوښه نه وه دخلقیانو او پرچمیانو په ټکولو کي هم روسان ځیني ګیله من وه •» دا ګړنه یوه بلله معمي ده او بس تحلیل ګر پر درې لارې دروي نوورمعلومیږي ،چي امین دکارمل دډلي په اصطلاح فاشیست ؤ• ، دروسانو دفتوي پر بنسټ ،چي ویل به یې « فعالیت اجنت سي ، اي

---

• ولو « داؤد خان دکي جي .....» لمړئ چاپ ۱۲۱ ـ۱۲۲ مخونه

•کله چي کار مل واك ته ورسېد پخپله لمړی بیانیه کیې وویل «

، اې حفیظ الله امین بعد از انقلاب ثور)) امپیریالیسټ بلل کېدی، دامریکایانو په اصطلاح ((افغان ستالین))• او که دعامو په اصطلاح ګورو نو یو جابر واکمن ؤ•

ددې ټولو سره سره نوموړي یو ځای باید له یاده ونه غور ځول سي هغه په دې معنی ،چي دهوتکي دربار او شېرعلي خان تر واکمنۍ پوري دملي فرهنګ او ملي ژبي(( پښتو)) دتر ویج لپاره نوموړي هغه څه په در بار کي وکړل ،چي نورو در باري واکمنو بیا څه ندي کړي دامین دوره که وکتل سي دافغانستان په سیاست کي هغه یوه دپام وړ دوره ده دروسي او کپیتلیستي ابرقدرتونو دمماس دنقطې حیثیت یې درلود

دامین دا کړنه روسانوته په دې دمنلو وړ نه وه ،چي دافغانستان موقعیت روسان په ښکاره او پټه اړ کول،خو دامین په موجودیت کي هغوی نېغ په نېغه لښکر کښي نسوای کولای سره له دې ،چي امین له سیاسي پلوه لکه خلګو ،چي تحلیلاوه تر هغه زیات سیاست مدار و ،لکن په نظامي چارو کي هغه لکه څنګه ،چي ښایېدل په هغه شکل وړ تیانه درلوده،ددې نه وړ تیا له امله یې لویه

•وګ ((جنګ افغانستان وشوروي)) ۷۹مخ

•وګ لویه جمهوري دیموکراتیک افغانستان ۱۳۲۴کال ۱۰۲ مخ د((انجنیرعصمت الله مسلم دوینا متن))

تېر وتنه هغه مهال وکړه کوم وخت ،چې نوموړي دروسي نظامي دیپلوماتانو دمشورې په لړ کي ددولتي ریاست له ماڼۍ ارګ جمهوري څخه دتاج بیګ تپې ته نقل کړ او بیا په همغه ځاي کي له منځه ولاړ.

## یو ځل بیا دمماس ټکۍ

سره له دې ،چې دترکي شپاړس میاشتنۍ دوره هغه دوره وه ،چې ملت یې ټول په تزلزل کي را ووست خو نړیوالو په ځانګړي ډول روسانو او امریکایانوته دځانګړې اهمیت دوره نه بلل کېده ځکه ،چې روسانو نوره دافغانستان په اړ وند ساه اخیستې وه دخپلو حریفانو په وړاندي یوه مهره مخ ته تللي ول او نور یې دخپلو پلانونو دعملي کولو لپاره طرحي ترتیبولې ، عربي او غربي نړۍ هم نور زړه ته تېره کړیوه ،چي په افغانه ټولنه کي په ډېر څه او ډېر وخت نوي بدلون نسي را تلای خو دامین په واك نیونه او په ښکاره ډول دپرچمي کمو نیستانو ترټنې او دروسانو سره دمعمولي سر ښوروني انګېزې نړیوالو ته دا موقع په لاس ورکوله .،چي دروسانو په وړاندي دتحرك قوه نوره هم پیاوړې کړي

روسانو په دې اساس ،چې هغه نور ددوی لاسپوڅی نه باله او امریکایانو هغه دیوه مکار په توګه پېژانده لهذا د دواړو دسترګو تور ورته پر تندي ول

روسانو پخپل تاکتیك کې تغیر راوستل غوښتل، امریکایانو دمقاومت پیاوړي کېدل پایله پردې سوه ،چې دواړو خوا ؤ دامین په دوره کې پر افغانستان دخپلې اچولومستقیم یاغیرمستقیم تکل در لود او دې مهال ددې شرایطو اودنړیوالوابرقدرتونو دسیاسیتونو په مغایرت سره بیا هم دامیر شېرعلي خان دورې ته ورته واقعات را منځ ته کولکوم ،چې په هغه وختونو کې نه دروسانو خوښ و او نه هم دانګریزانو او داوخت امین نه دروسانوو خوښ و ،نه دامریکایانو اونه هم په ملګرو ملتونو کې دوېتو دحق لرونکو هیوادونواونه هم دفولادي عزم لرونکي ساده لوحه ملت خوښ و.

## وروستۍ سلګۍ

څو ،چې په وروستي ځل په تپه تاج بیګ کي له منځه ولاړدا ،چې څنګه له منځه ولاړکېدای سي په لیکلو یې دا ستانونه او کتابونه ډك وي خو وروستۍ شېبې که دنوموړي یاده ونه باسو ډېري دافسوس وړ وې هغه په دې معنې ،چې دده دباندنیو دوستانو یې نه یوازي ملا ور ونه تړله ، بلکي برید یې پروکړ او له منځه یې یووړ دخپل کمونیست ګوند ناراضه غړو یې دقاتلانو ملا ور وتړله ،ولس په وړاندې دعقیدتي دښمنانو (مجاهدینو)تر شا ولاړ و.

## توره کودتا

په افغاني کمونيست ګوند کې دننه د هغوئ په اروند ډېر خلک په دې نظر دي ،چې روسان دکار مل په بلنه او دپرچميانو په غوښتنه کابل او بيا افغانستان ته راغلي او په دې اړه پر هيواد دسودا کولو دمعاملي پړه دپر چميانو پر غاړه وراچوي،چې رښتوني ثبوتونه همدا خبره مني او ډېر شواهد پر ليدل کېداي سي،خو دځينو خلګو په اند پخپله ځينو خلقيانو هم دا غوښتل ،چې بايد روسان ددوئ دملاتړ لپاره افغانستان ته راسي يو ددې خلګو څخه دروسي لښکر قومندان بوريس ګروموف دي ،چې واي دهرات دپاخون پر مهال ترکي زموږ څخه داسلحې او عسکرو غوښتنه وکړه.

بل تن ،چې اوس په دې نړۍ کې ژوند نه لري هغه په کندهارکي دخلق دګوند تيوريکل ښوونکی ،چې په مولنا محمد کبير مشهور ؤ ويلي وه (( که موږ ډېر مجبور سو او انقلاب له خطر سره مخامخ سي توره کودتا کوو او توره کودتا دروسي لښکرو درا غوښتلو په معني ده ،چې زموږ مترقي انقلاب ته به نجات ور بخښي )) خوکله درشتيا ميدان راغئ نودخلقيانو لخوا دتوري کودتا کولو په لمړي ځل کار ونه کړ او دکارمل تر راتګ پوري وځنډېده

.

## دروسانو راتلل ،که راوستل ؟

دروسانوراتګ افغانستان ته د دوئ دمخکنیواهدافو په نظرکي لرلوسره حتمي و،که دا مهال نه وای نو کېدای سوای څه موده پس افغانستان ته را غلي وای دوئ دافغانستان دنیواك لپاره له دوونیموسووکلونوڅخه مخکې دځپل یو واکمن پیترکبیرمفکوره په یادښت کې لرله ،چې دهند بحر دنیوني په موخه بایدټول اسیانشین هیوادونه ددوئ تر ولکې لاندي راسي ،چې دهنددبحر او روسیې ترمنځ پراته دي ددې کاردترسره کېداپاره لاڅه ،چې دخلیج هیوادونو ،چین او جنوب شرقي او جنوب غربي هیوادونو ته دیوه چوك په توګه افغانستان مطرح هیواد و،چې مخکې لا دتاریخ په اوږدوکې دورښمو دلاري په نوم یادسوی او تل داروپایي او منځنۍ اسیا دهیوادونو لپاره دلاري اساسي نقطه بلله سوې وه.

په بل اړخ کې په سمه کې دافغانستان دهوايي اوزمیني خطوطوعوایدلاسته را وړل هم هغه ګټه وه ،چې باید روسان یې دځان په نفع وکار وي.

کاني زیرمې دهغوئ استخراج ، او...... هغه څه وه ،چې روسانوته یې داقتصادي پیاوړتیااومځکنۍ پراختیالپاره ډېر څه په لاس ورکول،خوددې ټولوسربېره

افغــاني حکاموتــه ښــاييدله ،چــي ددې هيــوادد geo strategicمــو قعيــت دســاتني لپــاره يــې داســي يــوه political سياســـي لاره غـــوره کـــړې واى ،چـــي دخپلـــوملي ارزښتونودســـاتني لپـــاره يـــې کـــارکړی واى ،ولـــي افغـــان چـارواکي ديـوه داسـي اوږد مهالـه پـلان لرونکـي نـه وه ،چـي دا هيوادپـــه سياســـي لحـــاظ داميرعبـــدالرحمن ددورې غونـدي دشـرق اوغـرب دامپراطوريـوترمنځ يودتـوازن نطقـه وګرځـوي او دهغـه زوى اميرحبيـب الله خـان دعنعنـوي لـويي جرګې له لاري دهمدې هيوادبيطرفي ورته څرګنده کړله .

داوخــت ددې پــه اړوندلــه افغــاني چــار واکوســتره تېروتنــه هغهګــړئ وســوه ،چــي دوئ بهرنيــو هيوادونــو تــه ځوانـان دسکالرشـيپونواو بورسـونوپه موخـه ولېـږل هغـه پـه دې معنـــي ،چـــي نومـــوړي افغـــاني ځوانـــانو لـــه شـــوروي اتحاد ،جرمني،امريکې،مصـــر او....... هيوادونـــوددې پـــه عـوض ،چـي مسـلکي لاسـته راوړنـي ولـري او ددې هيـواد پـه ابــادی کــي کــاروکړي پــه عــوض يــې پــردی مفکــورې او عقيــدې دې خــاورې تــه را وړې ،چــي نــه يــوازي شــوروي لښـکروته يـې پـه افغا نسـتان کـي ديرغـل زمينـه برابـره کـړه ،دثـور نـاوريني کودتـا وسـوه بلکـي دشـوروي اتحـادتروتلو وروسـتـه سـتري هيلـي پـه اوبـو لاهـو سـوې ور سره جوخـت يـې داهيوادپــه ســلګونو کلونــو لــه صــنعتي او انکشــافي پلــوه

ترشاوغورځاوه که ،چیري ددې په عوض ،چې داکار ونه سوي وای ددې په عوض تر دوهمي نړیوالي جګړې وروسته دجاپان هیوادله صنعتي او په ځینوموار دوکي په مثبت اړخ کي دهغوئ له ملي تګلارو متاثرسوي وای هیوادیې په صنعتي لحاظ پرخپلوپښودرولی وای او دعراق ددولت پشان یې دحسن ابوبکراواروانښادصدام حسین غوندي دباندني علمي متخصصین خپلوپو هنتونوته را غوښتي اودلته یې دخپل دولتي سانسورترڅارني دهغوئ تدریسات تعقیب کړي وای

داسي به نه وای سوي او دشوروي اتحاددپراختیاپر مهال یې دپاکستان هیواداوسنی تګلاره پلي کړي وای یوازي له تورغوندۍ ، حیرتان ، او شېرخان بندرونونه نیولې تربولدك اوطور خم پوري ترډامبر شورویانوته دتکس په توګه لار ورکړي .

ډېره اسانه وه ،چې تېل سوي جګړي به له افغانستان څخه نوروخواووته نقل سوېوای اودسروقرباني به نه رامنځته کېدل،ولي ددې ټولوکارونوسربېره دا ،چیروسان دلته راغلل په هغه وخت دسمي قدرت و هغوئ دخپلي پالیسی مطابق ځان همداسي عیار کړي و ،چي دلته باید د مخکنی خبري په تائیدرا سي،خوروسانودخپلوټولوهغو اهدا فو په در لو دلو سره

،چې دسمي په سطحه يې لرل افغانستان ته را تلګ دملل متحد دمنشور د ۵۱ مادې په ثبوت يو حتمي کاروباله دخپل يرغل لپاره يې ددوئ په اصطلاح ډېري منطقي خبري او مادي وړاندي کړې .

هغوئ وويل ،چې موږ افغانستان ته ځکه راغلو ،چي په همدې هيوادکي وکولای سو دثور انقلاب درهبرانوپه بلنه همدلته دثورانقلاب پا يښت ته تکيه ورکړو اوپرېنږدو ،چې په افغانستان کي دثور کودتاه پرضد ،چينايي او امريکايي هيوادونه خپل نفوذمخ پروړاندي بوزي اوسباته دافغانستان دخلق دموکراتيک دولت منافع له ګواښ سره مخ کړي ولي په دې دليل کي دوئ پخپله ترسوال لاندي راتلل ،چي که داسي وي نويې ولي بياد کابل دحاکم رژيم متحرك سياس امين له منځه يووړسره آن تردې ،چې دروسانو هدف افغا نستان او په دې کي شك نه و،چې دوئ دي دخپلوپوره امکاناتوپه درلودلو پرافغانستان بريدنه وای کړی .

ځيني سياسيونوبياافغانستان ته دروسانوراتګ خپله ددوئ هدف نه ،بلکي دهغوئ دحريفانو (امريکايانو) جوړه طوطيه بولي اووايي ،چي داامريکايان و،چي دوئ يې دسريښنو په کاشين کي را ګير کړل• ولي

• وګ دسليګ هريسن اثر ((حقايق پشت پرده افغانستان ))

خبره ،چې پخپله دخلق دیموکرا تیك حکومت په پالیسي پوري تړاولري هغوئ دانقلاب څخه په لمړیو ورځو کې پر خپل ځان بسیاینه نه درلوده په بل اړخ کې دافغانستان په کمونیست ګوند کې دامین خپل سریوهغوی دې ته اړکړل ،چې افغا نستان ته راسي .

## دروسانودراتګ اړوند نړیوال غبرګون

دامین د له منځه تلو وروسته پرافغانستان دروسانو تجاوز کورني او دباندني غبرګونونه راځرګند کړل دې کار په اړخ کې دافغانستان مجاهد ولس ددوئ پرحریم دروسانو تجاوز وخروښاوه بلکې اړخ کې نړیوالو دخپلو منافعو دساتني په موخه دملل متحداو امنیت په شوري کې متفرقي نښئ ودرلودلې او له دې هیوادونو نه ۸۵هیوادونو پر افغاستان دروسانو تجاوز رسماً وغانده او له افغاستانه دهغوئ دسم دستي وتلوغوښتنه یې وکړه ۱۹هیوادونو دروسانوموجودیت په افغانستان کې مشروع او دافغان مقتدرحکومت دساتني لپاره تائید او دا یې دملګروملتونو دمنشور د ۵۱ مادې له مخې مشروع کړنه وبلله ۱۲ هیوادونو ممتنع رایه ورکړ اودملګروملتونو پر افغانستان دروسانودتجاوز په موخه دپریکړي پرمهال ۵هیوادونه په دې غونډه کې نه وه حاضر.

# دببرک ((کارمل)) دوره

# ۱۳۵۸ــــ۱۳۶۵

پــر افغانســـتان دشـــوروي يرغـــل پـــر مهـــال داســـي افغـــاني سياســـي او غيـــر سياســـي څېـــره بـــه نـــه وي ،چـــي يـــايې دكـــار مـــل لـــه نامـــه نـــه وي اورېـــدلي او يـــادي يـــې نـــه وي پېژنـــدلى مـــوږ بايـــدپرعمومي چوكـــاټ وړغيـــړواو شخصـــي تېـــري څخـــه ژورنـــاليزم داصـــولو ســـره ســـم تيرېـــده وكـــړو ولـــي دكارمـــل پـــه اړ ونـــدځيني داســـي څـــه ديـــادوني وړدي ،چـــي بايـــدبحث پروســـي هغـــه پـــه دې ،چـــي كارمـــل پـــه ځينـــو مـــواردوكي ځـــان عربـــي الاصـــله افغـــان ، تاجـــك اصـــله افغـــان او ځاى ځاى يې ځان پښتون بللى دى

پـــه هـــر صـــورت تـــرامين وروســـته دروســـانولخوا دهغـــه انتخـــاب پـــه دې اســـاس نـــه و،چـــي دولـــس پـــه مـــلا تـــړ دافغانســـتان ولـــس مشـــر ســـويدى بلكـــي روســـانوا ړ تيـــا درلـــوده ،چـــي دا ســـي يـــو څـــوك بـــا يـــدولري ،چـــي دوئ يـــې دســـطرنج دخپلـــي مهـــري پـــه توګـــه وكـــاروي ځكـــه يـــې نومـــوړى ددې دنـــدي لپـــاره پـــه افغانســـتان كـــي يـــووړ څـــوك وټاكـــه ترڅـــو وكـــولاى ســـى دهغـــه انقـــلاب مشـــرتابه پـــه غـــاړه و اخلـــي كـــوم ،چـــي دخلقيـــانو پـــه لاس را منځتـــه ســـوى او دا مهـــال يـــې دروســـي قوتونـــو تـــر پوښـــښ لانـــدي پـــه افغانســـتان كـــي ســـاتنه

کېده دهغه دانتخاب په مورداړ وندروسي جنرال بوريس ګروموف وايي :(( ښکاره ده ،چي دشوروي اتحاد داستخباراتوددولتي کميټې (ك ج ب )) د١٩٧٩ ميلادي کال په پای کي دافغانستان دنوي مشر په توګه دکار مل په تيا کلو سره لويه خطا کړېده دي ساز مان نه غوښتل ،چي پخپله دي خطا اعتراف وکړي •))دپورته خبري په راياديدوسره؛سره له دي ،چيبوريس ګروموف دا يوه خطا بولي دا پخپله دګروموف خطاده،چي دکار مل په اړ وندي بيا نوي .

هغه په دي ،چيشورويانو امين هم ځکه وواژه ،چي دسر سختانه کمونيستي توب ترڅنګ هغه يوځيرك اونه تېرايستل کېدونکي څوك و •که روسانو داخل بيا هم دامين پشان پرځان حاکم څوك را منځته کړي وای بيادوئ لپاره ستونزه وه،بلکي هغوئ پر ځان باندي دحاکم شخص په عوض پرځان دخوښ اوجاطلبه انسان ته اړتيالرله ،چي په دي سره يې کولای سوای دهغه دتطميع کولولپاره پرهغه هرڅه تپلي وای اودتطميع کېدوترڅنګ دانحراف په صورت ګواښ ساوه ،چي داپخپله د آزادو

سرې لښکري په افغانستان کي ٣٢٠ مخ•

•په کمونيزم دهغه داستقلاليت په اړوند وګورئ ((کي جي بي په افغانستان کي )) ١٠٥ مخ دواسيلي متروخين اثر

ولسونو دایلولو لپاره دستالین اولینن دکمونیستي افکارو زېږنده وروستۍ حربې وې •

کارمل دخپل اقتدار پرمهال امین دامریکې جاسوس ،دثور انقلاب دمؤسیس او رهبرنورمحمدترکي قاتل ،له سا مراج پلوه هیوادونو سره په سازش کولو تورن کړ.

کارمل دنوموړي په اړ وند یو کال وروسته دحزب دیموکراتیک خلق افغانستان دبریالیتوب په دوهم کال دخپل حاکمیت په لمړۍ وینا کي وویل ( درست دوسال قبل خلق نجیب وازاده افغانستان صفحه ئي جدیدي از تاریخ پر افتخار خویشرا گشود .........شوراي انقلابي وحکومت جمهوري دیموکراتیک افغانستان به مسائل مربوط به سیاست خارجي کشور توجه دایمي داشته وهمه کوششهارا انجام میدهند تا برای رشد وتکامل انقلاب ما حصول واهداف وارمانهای انرا بهترین شرایط و اوضاع مساعد بین المللي تامین گردد )• ولي کارمل دا ټول یوازي دیوه هدف لپاره کول کوم ،چي دده لپاره یې ګټه لرله•هغه دخپل اقتدار دساتلو په غرض له هیخ نه مخ

---

• وګ شفق مجله دوهمه دوره دریمه او څلرمه شماره
•وګ بیانیه ببرک کار مل سال ۱۳۵۸ثور
•وګ دکارمل وینا د()کال چاپ جیبي کتاب

نــه اراوه یــو ځــل بیــا بــوریس ګرومــوف :(( پــه واقعیــت کــې همـدا سـې وه پـر کـار مـل نـه خپلـو انـډیوالانو ، نـه ولـس او نـه زمــوږ ســلا کــارانو بــاور کــاوه هغــه دلــوړې ك،چــې عــوام غولــوونکي او فریکســون بــاز وو هغــه دانقلابــي جملــو تــر شــا دپټېـدو سـخت مهـارت درلـود دغـه اسـتعداد ده تـه دا وس ور کــړی و ،چــې ځــان دځــان لاربښــود کــړي ))• ددا ســې کــس ارتیاارینـه وه ،چـې روسـان یـې بایـد پخپـل قشـرکي وسـاتي او دده لـه نامـه ټـولي هغـي بـر نـامې ،چـې روسـانو لرلـې بایـد پلـې یــې کــړي ،دنومــوړي پــه دوره کــې داســې مســایل پــېښ ســول ،چـې تـاریخ بـه یـې پـه ډېرخـه هېرنـه کـړي د عـوام غولـونکي او بـادار غوولـونکي ترڅنـګ دډاکټـر نجیـب ، او امـین پـه پرتلـه ډارن و نومـوړي تـر پایـه پـه دا سې حـال کـې چـا ونـه لیـد ،چـې دجګـړې پـه معرکـه کـې وي، صـرف څوځلـه ولـس تـه دځـان ښـودلو پـه نیـت دکابـل ښـارته را ووت او دوو درو ولایتـونوتـه یــې پــه داســې حــال کــې ســفرونه درلــودل ،چــې، دهمغــه ولایتونو له قول اردو ګانو دباندي راونه ووت .

نومــوړي دروســانو پــه موجودیــت کــې بیــاهم خپــل حکومــت خپلــواك بالــه دکارمــل پــه دوره پــوري اړونــد دهغي دورې ډېــر وزیــران دده پشــان پــه دووســترګو دلمرپټــوونکي و دوئ دشــوروي اتحــاد قوتونــه یــې پــه افغانســتان کــې

سرې لښکري په افغانستان کې ۳۱۹ مخ•

مېلمانه بلل ،خوله دوئ سره پر دولتي پوستونو نصب سوي روسي مشاورين په صلاحيت کي له دوئ لوړ او دمسئوليت ساحې يې دوئ ته ور پرېښې وې ددوئ ددولت لمړي وزير سلطان علي کشتمند دافغانستان ددموکراتيک جمهوريت يې يو بې پرې اوغيرمنسلك هيوادوبالهغه په ډهلي کي پر ۱۳۶۱ لمريزکال د حوت پر۱۹نېټه دغيرو منسلکو هيوادونو غونډه جوړه سوه

دخپل دولت بې پرې والی وښود •او دشوروي اتحاد محدود قطعات يې په افغانستان کي موقت وبلل هغه وويل «*مردم ما با اتخاذ راه انقلاب ثور سر نوشت خود را يکبار براى هميش تعين کرده اند ولي متاسفانه قلمرو پاکستان بحيث پايگاه تجاوز عليه جمهوري ديموکراتيك افغانستان وسيعاً مورد استفاده قرار گيرد بمنظور خنثي کردن اين تجاوز حکومت جمهوري ديمو کراتيك افغانستان کمك قطعات محدود نظامي اتحاد شوروي را درمطابقت کامل قرار دارد دوستي وهمسايگي نيك دوكشور منعقده پنج دسمبر ۱۹۷۸ ومادہ ۵۱ ملل متحده مطالبه کرده ........ اين قطعات محدود فقط زمان به کشور باز خواهد گشت که تمام انواع*

*مداخلات درامر داخلي کشور ما قطع ګردد »* [•] ببرك کارمل دخپلې دورې په لړکې له یوه اړخه په عامه ولس کې په تدریجسره هغه پاته ملاتړ هم له لاسه ورکړ ،چیلایې توقع ځینې کول .نوموړي تردې وروسته دڅرخي پلچه دزندان ددروازو له خلاصولو څخه ځو میاشتې وروسته؛نه یوازې په هغه زندان بلکې دافغانستان په ټولو هغه محبسونو کې ،چې په لایتې سطحه یې ددولت په واك کې قراردرلود . دګنجایش ځای په دوهم ځل پاته نه سو ،چې نور بندیان پکښې ځای سي ، زندان ډك،پنځه اتیاپه سلوکي ښارونه له خلګو خالي او ددباندنیو هیوادونو ته په هجرت اړ سول یوازې دازادۍ احساس په هغوکلیو اوبانډو کې کېدی ،چې دمجاهدینو ترکنترول لاندې وې

دکارمل درژیم په واکمنۍ کې سره له دې ،چې یوکلی او بانډه هم دنوموړي درژیم او شوروي لښکرو له بمباروېوخلاصې نه وې په ښارونو کې څه موده پس کور په کورتصفیوي عملیات پیل سول دهري میاشتې په سراو پای کې دشوروي لښکرو ، څارندوی ، قل اردو او امنیت ملي لخوامحاصرې او دکورونو تالاشۍ پیل سو.

• وګ دافغانستان کلنۍ ۱۳۶۱ کال ۲۹۵ مخ

## دافسرانو دپاڅون احساس

د ۱۳۶۳_۶۵ کلونو په لړ کې روسان نور په دې پوه و ،چې دکابل رژیم په هېڅ ګون دخلګو ملاتړتر شا نه لري په همدې وختونو کې دکارمل پر ضد د(حکمتیار) لخوا دکودتاه کولو خبرور کول سوددې خبر راز ښکاره کېده دامنیت دولتي (خاد)ددستګاه ریس نجیب لخوا را ڤرګنداو دکندهاري عبدالحي داوي یې د۱۳۶۳کال دوري دمیاشتي پر لمړۍ نېټه دکوتاه په تورد کابل په هوایي ډګرکي ونیوی.نوموړئ یې په دڅرخي پله په زندان کې داعدام په طوردمحبس دپنجروشاته ورتېل واهه کله ،چي بیا نجیب واک ته ورسید له نوموړي سره یې ۱۲ تنه نورکسان د ۱۳۶۲کال د(۱۱) میاشتي پر ۱ نېټه اعدام کړل .

## دکارمل دوره اوعمومي پاڅون

پر افغانستان دشوروي اتحاد دځلوښتم لښکر یر غل پر عامه ذهنیت او ټول مسلمان ولس ناوړه اغیزه درلوده روسانو دخپلي ستري اشتباه په کولو سره دشرېښو په دې کاشین کې ځان بند کړ همدا وو ،چي دجدي دمیاشتي په اوومه شپه په دوهم ځل کي دافغانستان په ګوټ ـ ګوټ کي دحزب اسلامي لخوا خلك

عمومي پاڅون ته را وبلل سول سره له دې ،چې تردامهاله دچندوال ، هرات ، کنړ او خاکریز دسمویه شمول ۴۰ ځلې پاڅونونه سوي وه ولې دې پاڅون په ټول ملت کې دعمومي قیام رنګ واخیست ،په ټول سراسر ملت کې دجهاد هنګامه خپره او ټول ملت له سوټې او کلنګه سره دحکومت او روسي قواوو پر ضد را پورته سو.

## ناهیده•

کله ،چې دافغان انګلیس دلمړۍ جګړې پر مهال په سپین بولدک کې دریدي خان مېرمن دلمړۍ شپې ناوکۍ تورپېکۍاو ددوهمې جګړې په یادونه دکندهار دمیوندولسوالۍ نوم څوک یاد ته را ولې نو ور سره جوخت غازي محمد ایوب خان او دهمدې میوند ولسوالۍ دخوګیانو دکلي پېغله ملالۍ نوم یاد ته راځي ؛

•دا ناهیده چې دلته یې یادونه کېږي دمحمد یوسف لور په ۱۳۳۹لمریز کال په کابل کې زوکړې وه . او د کابل ښاردرابعه بلخي لېسې ددولسم ټولګۍ زده کوونکې او دسازمان جوانان مسلمان دښځینه څانګې غړې وه چې د ۱۳۵۹ لمریز کال دثور پرنهمه نېټه یې پاڅون وکړ .
ددې ترڅنګ دافغانستان په معاصر تاریخ کې بله شهیده خور پېغله ناهدهم سته چې دښاغلي برهان الدین رباني دحکومت دورې په لمړي کال دتوپکیانو دسرتېروجنسي بریدترمخه یې دمکروریانوله بلاکه ځان را وغورځاوه او شهیده سوه .((وګ)) داکاډمیسن پوهاند رشاد صاحب اثر((دافغانستان بدي ورځي )) ((۲۷)) مخ همدا شان کابل مجله درېیمه ګڼه ۱۳۷۱لمریز کال .

تـر دې را وروسـتـه پـر افغانسـتـان دشـوروي دتجـاوز پـه لړکـي نـوري درنـې میرمنـې هـم دیـا دونـې وړ دي ،چـې دهغـوئ لـه جملـې دپکتیـا دسـپیني شـګي اوسـېدونکې ((نـوربي بـي)) او دکابــل دخــاک جبــار داوســېدونکي مجاهدې(شــېرینۍ)او دکنـدهار ښـار ګلالـۍ نـومي خونـدي دي ،چـې دتـاریخ پـه لیکـو کـي بـه یـې نومونـه تـل پـاتي وي ددې پـاتي نـوم لرونکـو لـه خوینـدو دوې نـوري خونـدي ،چـې ((ناهیـد او وجهیـه)) دي ،چې دشـوریو یـر غـل پـر مهـال یـې پـه کابـل کـي پـه پـاخون لاس پوري کړ.

دادوې خوینــــدي ،چــــي د((ســــازمان جوانــــان مسـلمان)) حـزب اسـلامي دښـځینه محصـلینو پـه صـف کـي یـې قـرار درلود.ناهیـدیې دهمـدې سـازمان دښـځینه برخـې مشـره اودکابــل پوهنتــون محصــله وه ،چــې د۱۳۵۸ لمریـز کـال دحـوت دمیاشـتي پـر ۳ نېتـه یـې دکابـل پـه (( دهبـوري)) کـي ځوانـانو محصـلینوته درخصـتۍ پرمهـال لاس پـر ځیګـر کښېښنوداو بیایې دوئ مخاطب کړل .

(( دا ځګرونــه الله داســلام پــه لاره کــي دمســلمانو ځوانانولپاره پیدا کړي دي اې بیدو!!

اې بیــدو!! مــه پرېــږدی ،چــې پــردې ځګرونــو بوالهوس،نــاروااو روســي لاســونه لــوبي وکــړي))دې شــعارونودکابل ښــار پــه غلغلــه بــدل کــړاو د ده مزنــګ

پرلــورددې پــاخون لــړۍ وغځېدلــه ترمــازدیګره ددې پــاخون پــه وړانــدې دروســانوخونړۍ ځینــې تــر اویازیــات ځوانــان محصلین اومحصلیني دشهادت سپنلي کړل

ناهیــد ،چې پــه لمــړي صــف پــه وروستیوشــېبو کــې زخمــي وه پــه علـي اباد روغتــون کـې تربســتري کېـدو وروســته دشپې لخوادزهروپېچکارۍ په توسط شهیده سوه

## نړیواله کارنامه

د۱۳۲۳لمریــــز کــــال پــــه اوږدو کــــې ،چــــې د۱۹۴۵مـېلادي کـال سـره سـمون لـري پـس لـه څـو کلـن دوام څخـه ددوهمـي نړیـوالي جګـړې پـه ختـم کـې پـه یـوه اړخ کـې روسـانو دسـتالین ګـراد پـه سـمه کـې هټلـري ځواکونـو تـه تـر مـاتي ور کـړې وه ، پـه شـرقي اسـیا کـې لاجګـړې دوام درلـود ، د روسـیې متحـد دامریکـا متحـده ایالتونـه تـر دې دمـه نـه وه توانېــدلي ،چــې دجرمنیــانو ســره متفقــین جاپانیــان لــه ماتي سره مخ کړي او جګړې ته دپای ټکی کښېږدي.

دا جګـړه تـر دا مهالـه دجاپانیـانو پـه ګټـه وه لـه یـوه اړخـه یـې پـه جګـړه کـې فعـال حضـور درلـود پـه بـل اړخ کـې یـې دا مهــال دســمي هغــه هیوادونــو تــه ،چــې ددوئ ســره ائــتلاف کــې شــامل وه ، هغــوئ تــه دخپلــو اســلحو صــدور تــه دوام ورکـاوه . امریکـا اړه سـوه ،چـې دجاپـان هیـواد پـر ناګاسـاکي او هیروشــیما ښــارونو بانــدې د(fat) او (baby) پــه

نومونــو اتــومي بمــان وغورځــوي او نومــوړي دوه ښــارونه دخاورو خاکګاه کړي .

تــر پېښــي وروســته پــه شــرقي ســاحه کــي يــوازي دجاپــان هيــواد اوکينــاوا جزيــره وه ،چــي د پيــاده جنــګ د ميـدان څخـه جاپـاني سرتېرو پـه انتحـاري بريـدونو لاس پـوري کړ.جاپــاني پيلوټــانو خپلــي جنګــي الــوتکي دامريکــي پــه جنګړييــزو او ترانســپورتي الوتکــو پســي مخــامخ ور وســتلې او بحـري سـر تېـرو يـې تـر ۱۴۰۰ دزيـاتو کوچنيـو کښـتيو پـه مخــامخ ورځغلونــه ، ټکــر او جاودنــه ســره دامريکــي پــر کښـتيو بريدونـه پيـل کـړل .پـه پايلـه کـي امريکـايي سـر تېـري پــر دې وتوانېــدل ،چــي ددرنــو تلفــاتو دګــاللو ســره ـــ ســره داوکينـاوا دپيـاده کنـډکونو ميـدان تـه ور پلـي او لـه جاپـاني سـر تېـرو سـره ميـل پـه ميـل جګـړه وکـړي، پـه نومـوړې جګـړه کـي ،چـي لـه طرفينـو څخـه (۵۰) سـرتېري تلـف سـول پـه پايلـه کـي جاپـاني قومنـدان دخپلـي تـوپنچې پـه مـر مـۍ دځـان پـه وژنه دې جګړې ته دامريکا په ګټه خاتمه ورکړه.[4]

[4] د ۵۰ زرو تنـو دغـه هـديره مـا دکتـاب ليکـوال هغـه وخـت وليـده ،چــي دکنــدهار د معــارف پــه اســتازيتوب مــي دنــړۍ د۳۴هيوادونــو پــه کنفـرانس کـي دګـډون پـه موخـه جاپـان تـه پـه ۱۳۸۲کـال کـي سـفر درلـود . ولې ((لمرين کلى ))

ددې جګړې پایلې او څېړنه ،چې پخپلو وختونو کې هر اړخیزې څېړل سوې ، په دې کتاب کې څېړل یې دموضوع مسیر پر بل لورې بیایي ، که مبالغه ونه سي تر دې جګړې را وروسته په نړیواله او جوړیې ډول دهیوادونو تر منځ په جګړو کې به داسې تلفات نه وي څرګند سوي ،چې دموټریزه کاروان سوځېدنې دې صورت نیولی وي ،دافغان شوروي جګړې پر مهال دا افتخار هغه وخت دافغان مجاهدینو په برخه سو،چې کله د ۱۳۶۱المریز کال دجدې پر ۷نېټه دکندهار ښار په منځ کې دمجاهدینو لخوا دروسانو پر کاروان برید وسو.

دا برید ،چې دکندهار ښار دپنځمې ناحیې د «نوي ده خواجې»[5] په سمه کې دقومندان عبدالحلیم «ګرانې» او تر ۴ دزیاتو مجاهدو قومندانانو په قومنده تر سره سو.دخواجك بابا له زیارته د لالک ماما تر تعمیره تر ۲۰ دزیاتو تېلرو موټرانو کاروان ،چې دزریدار

[5]نوې ده خواجه په دې معنی ،چې داوسنی احمد شاهي کندهار ښار، چې دلوړ درشل احمد شابابا له خوا په شپږسوه جریبه مځکه کې نقشه سو ، تر دې مخکې دکندهار ښار داوسنۍ څلرمې ناحیې دبامیزو کوڅې پر ځای دکاکړانوکلی و، چې یو مسجد یې درلود ، داکلی په همغه وخت کې د «ده خواجې» په نامه یادېدی . وګ احمدشاهي کندهار داستاد محمد معصوم هوتک اثر دنادرشا افشار ددربار دمنشي محمودحسیني په حواله

تــانګونومرمۍ او ناپــالم بمونــه پــه کښــې بــار ول اور واخیست .

پــه پایلــه کــې یــې دوخــت حکومــت ددې ســیمې دســرک دغــاړې راســته او چپــه دکانونــه او کورونــه وروســته پــه بېلــدوزرونو ځکــه ونــړول ،څــو بیــا لــه دې ځایــه پــر کــاروانو برید ونه سي .

## دمحمد ظاهر خان اراده

د ولــس دمقاومــت یــوه جبهــه داوخــت پــه متعــددو جهادي ګوندونو یا جبهو اووښتې وه .

ددې مقاومــت کلیــدي تنظیمونــه پــه پېښــور کــې او څــه نــور یــې پــه ایــران کــې ول پــه ایــران کــې داســتوګنو مقــاومتي ډلــو پــه پرتلــه دپېښــور ډلــې دمــذهبي او میلیتــي ډېرښــت پــر اســاس پــه ډېرکــې کــې قــرار درلــود او دمقاومــت حســاب هــم پــر دوی کېــدی، ســره تــر دې چــې هــره تنظــیم بــه ځانتــه پالیســي لرلــه خــو دروســانو پــه وړانــدې یــې دمقاومــت شعار یو وو .

همــــدا مهــــال ووچــــې پــــه ۱۳۶۰لمریزکــــال دافغانســـتان پخـــواني پاچـــا محمدظاهرلـــه روم څخـــه دبـــي بـــي سـي راډیـو پـه مرکـه کـې پـه جهاداومقاومـت کـې دګـډون پـه موخـه خپلـه اراده دایټالیـا لـه مرکـز روم څخـه دبـي بـي سـي پـه څپـوکې خپـره کړه((امــادګي مــن ســهمګیري درجهــاد مــردم

افغانستـــان ازمصـــاحبه بـــا روزنامه(لومونـــد)اغازنیافت بلکـــه از بـــد چنـــدين بارتقـــارير همبســـتګي خـــودرا بـــا هموطنـــان مجاهـــد وامـــادګي خـــويش را بـــرای ســـهم ګیـــري دريـــن جهـــاد توســـط اعلاميـــه هـــای جـــدا ګانـــه اظهـــار نمـــوديم ))دنومـــوړي ددې ارادي پـــه څرګنـــدولو ســـره دجهـــادي صـــفوف چـــي مخکـــي پـــر څـــو لارو وه پـــه فکـــري ډول وددوو لارو تـــه ســـوق ســـوه چـــي يـــوه ډلـــه يـــې پـــه ازاد ډول دفعـــال ســـهم پـــه درلودلودظاهرخـــان ددې خبـــرو مخـــالف ول او هغـــوی ادعـــا کـــول چـــي ظاهرخـــان بايـــد عمـــلاً پـــه دې لاره ګـــډون ولري،خـــو ځينـــي يـــې چـــي لـــه پخـــوايي دافغانســـتان دســـلطنتي دربارســـره اړيکـــي لرلـــې دمحمـــد ظاهرخـــان پلـــوي ســـول چـــي پـــه دې ســـره دميـــډياوو لخواپـــه پيښـــورکي جهـــادي ډلـــي پـــه ميانـــه رواوبنســـټپالو وېېژنـــدل سولې

## له کارمله نفرت

پـه هيـواد او ولـس کـي دکارمـل پـه وړانـدي کرکـه موجـوده سـوه دې کرکـي پـه يـوه اړخ کـي دثورکودتـا پـه پايلـه کـي درامنځتـه ســـوي حکومـــت کـــاري کړني،اوســـتراتېژي بطـــي کولـــه ولـــس داحکومـت يـوه اجيـره اداره بلـه روسـان دهغوژمنـو پـه لړکـي ،چـي پـه ښـکاره يـې دافغـان ولـس دراجلبولولپـاره پرکـاراچولې نـو بـې ګټي،بللـې همـدا لامـل و دهغـه ليـري کېـدولپاره روسـان ديـوه بـل بديل په لټه کي سول .

## ۱۴جنګي الوتکي

د۱۳۶۳ لمريز كـال پـه دوبـي كـي داروزګـان ولايـت پـه دهـراود ولسـوالۍ كـي دمجاهـدينو دوو ډلـو تـر مـنځ خپـل منځـــي شـــخړه را ولاړه ســـوه ددې شـــخړې دهـــواري لپـــاره دافغانســـتان دجمعيـــت علمـــا مشـــر مولـــوي عبـــدالله ذاكـــري (صـاحبجان صـاحبزاده ) او دكنـدهار جهـادي قومنـدان حـاجي اســـدالله هلتـــه ورغلـــل،تر څـــو دمجاهـــدينو تـــر مـــنځ روغـــه وسـي، ددې روغـي دكېـدو سـره جوخـت داسـدد مياشـت پـه پيـل كـي شـوروي لښـكرو لـه كنـدهار ه پردهـراود بريـد وكـړ بريـد ډيـر پـراخ و، لـه يـوه اړخـه دوبـئ پـه بـل اړخ كـي دسـرحدي سـمو پـه پرتلـه داسـلحو اومهماتونـه رسـېدو دسـمي مجاهـدين او عـام خلـك لـه كـړاو سـره مـخ كـړل ،ولـي دا سـمه دروسـانو پـه لاس كنېـېنوته لـه هلمنـد څخـه دحركـت انقـلاب اســلامي ولايتــي اميــر مــلا محمــد نســم اخنـدزاده دډيــرو مجاهــدينو پــه قــوت ددهــراود جهــادي قومنــدان ميرحمــزه اســتاذ پــه ملاتــړ ځــان ور ورســاوه ،لــه كنــدهاره ملاشــيرين ، ملانقيــب الله ، حــاجي ســركاتب شـــهيد مل،شـــهيد لطف الله اغـــا ،عبـــدالرحيم حقـــاني،ملابور جـــان او شـــهيد حيـــدري صـاحب سـره لـه خپلـو جبهـو ، همـدا شـان پخپلـه دارزګـان لـه تيـري څخـه دمحمـد نبـي خـان تـوخي او جـان محمـد خـان

قوتونو دجګړې ډګر ته را ودانګل دمجاهدینو او روسانو ترمنځ دې جګړې داسې زور واخیست ،چې دافغانستان په تاریخ کې یې ساری ډېر کم لیده سې په سمه کې دافغانستان دډیموکراتیک حکومت ځواکونو او روسي قواوو هم په پراخ مټ داسې برید وکړ ،چې مجاهدین یې په ډېرو سموکې تر ځینې لاندې را وستل ،خو دې ځینې ،چې شومره زور واخیست په هماغه اندازه ددواړو اړخونومالي اوځاني تلفات هم زیات سول

دهمدې قوې په ترڅ کې یوې روسۍ الوتکه پرسیمه دبمبارد په لړ کې را نسکوره سوه ددې الوتکې قومندان یو روسۍ او له نوموړي داسنادو دتر لاسه کېدواو پرتېتېر او اوړو دهغه له شعاعو ښکاریده ،چې هغه دشوروي اتحاد دفوځ داعلي قومندانۍ په صف کې له لسګونو څخه یو فلډ مارشال دی، دنوموړي اسناد دسعدیه جبهې مشرتابه ته لاس ورغلل او نوموړي همدلته دسیمي دخلګو لخوا تر مړیني وروسته لت او کوب سو

روسانو دنوموړي دجسد دتر لاسه کولو لپاره دهغه دچاپیر سمه سره تبۍ کړه،دهغه دتر لاسه کولولپاره جګړه دومره زورروره سوه ،چې ددوو ورځو په لړ کې روسانو یو په بل پسې ۱۴ جنګي الوتکي له لاسه ورکړې .

کله ،چې دنومـوړي دجسـد دتـر لاسـه کولـو اړونـد بـر لاسـي نـه سـول دسـعديه جبهـې اميـر او پـه کنـدهار کـې دحـزب اسـلامي قومنـدان حـاجي اسـدالله تـه د (سـپين چـک )پـر مـخ خپلـي خوښـي طلايـي روبلـو پـه بـدل کـي دهغـه دجسـد ، يونيفـارم او شـعاعو دترلاسـه کولـو غوښـتنه وکـړه خـو پـردې اسـاس ،چـې دنومـوړي جسـد دسـمي خلګـو لتـاړ کـړی دوئ ته څه په لاس ورنه غلل .

ددې جګـړې تـر ارامـۍ وروسـته روسـانو داسـې فکـر کـاوه ،چـې دهغـه جسـد دکنـدهار پـه خـاکريز کـې دحـزب اسـلامي عمـومي قـرار ګـاه (اسـلام درې )) تـه وړل سـوی دی همـدا وو پـر هغـه سـمه نومـوړي قـوې يـر غـل ور ووړ پـه دې سـمه کـې دحـزب اسـلامي دسـمي دقومنـدانانو حـاجي تورجـان ((ورک مامـا)) ،حـاجي محمدقسـم او حـاجي نيـازي بـارکزي تـر څنـګ دشـيخ محمـد اصـف محسـني دګونـد دولايتـي اميـر مامـا علـي يـاور تـر جوابيـه غبرګـون لانـدي راغلـل دې جګـړې ،چـې د۱۱/۵/۱۳۶۳نېټـه بانـدي صـورت ونيـوه پـه جګـړه کـې دروسـانو دتلفـاتو تـر څنـګ دوه پيـاوړي قومنـدانان حـاجي محمـد قسـيم،چي دوې جنګـې روسـۍ الـوتکي پـه دې جګـړه را نسـکوره کـړي وي دحـاجي نيازي سره يو ځاي شهيد کړای سول.

دنومـــورړو دوو تنـــو شـــهیدانو مقبـــري او س دشامقصود دزیات په ماجر کي ستـه .

## دکارمل بدیل ته اړتیا وه

دبـدیل اړتیـا پـه دې پـه دوو مـواردو کـي ،چـي یـویې پـه هغـه وخـت کـي دافغانسـتان دسیاسـي قضـیې دحـل لپـاره داســي یوبــدیل،چي دملــت دارادې تمثیــل وکــړای ســي دروســـانو دوتلـــو لاره برابـــره کـــړي اوملـــت دخپلوارمـانونوتحقق ومـومي بـل پخپلـه دروسـانو دمنـافعو دسـاتني پـه غـرض ددوئ دبـدیل انتخـاب،چي ورځ تـر بلـي دشـوروي لښـکرو پـه وړانـدي دخلکـو پـاڅون زور اخلـي او حـاکم حکومـت خپلـي پـاتي سـمي لـه لاسـه ور کـوي خـو ددې دوامـداره او اوږدې جګـړې داختتـام څـرك نـه ترسـترګو کېـږې اړینـه یـې وبللـه،چي ددې رهبـرۍ پـه بـدل یـوه دا سـي مشـرتابه دکابـل پرتخـت نصـب کړي،چـي کـه پـه افغانسـتان کـي کـوم سیاسـي استقراراومشـروعیت نسـي راوسـتلاي دومـره خوبـه وکړي ،چي ددوئ دوتلو لپاره زمینه برابره کړي

پــه دې اړونــد دوخــت دپېښوشـــاهداو دکارمـــل درژیــم نــژدې څــارونکی ګرومــوف وایــي((*پـه کابـل کـي داعقیـده منځتـه راغلـه ؛ اومسـکو ورسـره موافقـه وکـړه ،چـي کـارمـل بایـد خپـل ځـای یـو نـوي ځـواکمن مشـرتـه خوشـي کـړي سـلا دافغانسـتان داسـتخباراتي اداري پرمشـر نجیـب*

*الله را غلــه ،چــي د۱۳۶۵ کــال دجــوزا پــه میاشــت کــي دافغانســتان دخلکــو ددیمــوکرا تیــک ګونــد عمــومي منشــي په توګه وټاکل سو.»*

سرې لښکرې په افغانستان کې ۳۲۱ مخ.

# د ډاکټر نجیب الله دوره

# ۱۳۶۵ـ۱۳۷۱

دافغانستان دخلق دموکراتیک ګوندپه مرکزي کمېټه کې دنجیب په پرتله د ېرداسي کسان ول ،چې په ګوندکي دسابقې اوپه غړو کې دنفوذله مخییې کولای سواى ،چیتر کارمل وروسته ددې ګوندا وترواك لاندي یې حکومت رهبري کړي ولي په دولت کې دټولودولتي کړیواوسړیوپه کیفیت پوهنجیب روسانوتر نورو اړین وباله او دا ځل یې دیوې ځواني اوباکرکتېره څېرې په ټاکلو ،چې دافغانستان رهبري ددوئ دوفاداری په موخه په ښه توګه پر مخ بوزي رامنځته یې کړاودافغانستان دجمهورریس په توګه یې دې سختې دندې ته پر۱۹۸۶مې ۴نېټه په داسې حالت وګوماره ،چې دافغانستان په اړوند دشوروي اتحاد په سیاست کې له ورایه بدلونونه مخ پرځرګندیدو وه اوددې بدلونو په پلي کېدو سره یې نجیب وړتیا درلوده .

## بدلونونه

له ببرك کارمل څخه ډاکټر نجیب ته دشوروي اتحاد د کمونیست ګوند دمرکزي کمېټې لخوادواك دورکولوپرمهال نجیب له هغوی غوښتي وه ،چې دګوند د برغړي له نوموړي سره سم زړه نه لري هغه په دې

معنــي ،چــي امینــي او ترکــي خلقیــان یــې دپرچمــي تــوب ،دکارمـل ډلـي پرچمیـان یـې دپښـتونولۍ پـر بنسـټ ورتـه پـه جبهــه کــي ول تــردي لاپــه لــوړ اســاس کــي دمجاهــد ولــس جهــاد اومقاومــت خــو لاهغــه نــه پخلاکېــدونکې جبهــه وه ،چـي ددوئ پـه وړانـدي یـې عملـي مسـلح مقاومـت کـاوه ځکـه بایـــد ده تـــه پـــوره اختیـــارات اوپـــه کابینـــه او نـــورو تشـــکیلاتوکي دبـــدلون صـــلاحیتونه ور کـــول ســـي ،چـــي روسـانو هـم پـه هغـه وخت کـي دا سـي وکـړل او لـه نومـوړي سـره یې داخبرومنله.

وروســـته ،چـــي کلـــه دملـــي روغـــي جـــوړي پروســـه تـــر کـار لانـدي کېدلـه روسـانو پرنجیـب اسـرار وکـړ ،چـي دځینـو دولتــي لویــو پوســتونو پــه اړ وندداســي یــوه ســتراتېژي غــوره کــړي ترخــوملي روغــه جــوړه دولــس او ازادو سیاســیونو پــه وړانـدي څـه تحقـق ومـومي او پـه دې سـره وکـولای سـي ،چـي ددولـت پـه کابینـه کـي غیـر حزبـي کسـان را منځتـه کـړي ددا خبــري اړوندغیرګونــدي ســړئ ولــي دنجیــب حقومشــاور اســتادعبدالرحیم هــاتف یــې پــه اړونــد دا ســي وایــي «پــه افغانســتان کــي عمومــاً دا تمایــل پیــدا ســویو،چي پــه دولــت کــي ،چیپــه انحصــاري شــکل دولتــداري،چي دیــوه حــزب حکومــت وي نــه چلېــږي ، دوام نــه کــوي بایــد یــوه ایتلافــي

اداره جوړه سي څکه نوموړ خپله پروسه تر دي کار لاندي ونیوله ››•

## دببرک کارمل خروش

نوموړي دواک څخه تر لیري کېدو وروسته ارام نه کښېنستی ،بلکه د دکتور نجیب الله څخه دکودتا په تر لاسه کولو سره دتحرکاتو لټه وکړه .ببرک کارمل د په دولتي کي په خفیه ډول دننوتي په هدف د نجیب په حکومت کي دننه د ‹‹سازمان نجات ملي افغان›› سمتا په نوم ۳۰۰ کسیزه ډله ننه ایسته .

دې ډلې که څه هم خپل فعالیت ته دوام ورکاوه ،لي دملي امنیت درياست دڅار په موجوديت کي پر دي برلاسي نه سوه ،چي په کودتایي یا یاخوني شکل واک ته ورسېږي .دې ډلې دهیواد دباندي په پاکي دهمدې ډلي دیوه فعال غړي خدایداد بشرمل په مرسته وکولای سوای ،چي دغیر پښتني جهادي ګوندونو سره لاس یو کړي او دراتلونکي لپاره ائتلاف جوړوني پېلوځی کښېږدي .

---

وګ (بي بي سي را ډيو)دژوندیو خاطرو خپرونه ثبت یې په غریبك ارشیف کي •

## له افغانستان څخه دشوروي وتنه

په ۱۳۵۸ لمریزکي شوروي اتحاد دڅلوېښتم لښکررا تلې افغانستان ته پرافغانانودناورین کال ووهغه په دې معني ،چي په دې وخت کي دولتي دستګاه پخپله له روسي لښکرو سره مله دولس په وړاندي په جبهه کي او په ولس بیله کمر شکنو او بالاړنو تو پکانو بل څه نه و،ولي کله ،چي مجاهدین له روسي او افغاني لښکرو څخه دغنیمت سوي وسلې او ورسره تر څنګ تر ۱۳۶۱ کال څخه را وروسته دنوروغربي اواسلامي هیوادونوڅخه دوسلودترلاسه کولو لپا ره افغان جهادي اړخ هم پیا وړي سو .

څه ډول ،چي ولس هر څومره پیا وړی کېده په هماغه اندازه دجبهه یې جګړې لړۍ هم پراخېدله ان تردې ،چي یو ښار او بانډه هم دجګړي له تاراکه فارغه نه وه ولي دجګړې لمړۍ سخت ترین پړاو ۱۳۶۲ ـــ ۱۳۶۴ کلونه وه داهغه وخت و ،چي په کندهار ،پروان ، وردګ ،لوګر، کنړ ،خوست ، پکتیا ، او ... کي روسان دجګړې په ډګر کي څو ځلي شاتګ ته اړیستل سول تر ۱۳۶۵ لمریزکال پوري سره له دې ،چي روسانو دافغانستان دمځکنۍ قبضي تر څنګ پر هوايي سترا تیژیکونقاطوحاکمیت درلود ،ولي له پاکستان او ایران څخه دمجاهدینودراتګ

پرتـه بـل څـه روسـانو دا سـي ونـه ليـدل ،چـي پـه ښـکاره نظـامي يـو نيفـارم کـي دپاکسـتان او ايـران ځواکونـه دمجاهـدينو تـر څنـګ افغانسـتان دروسـانو او افغـاني حکومـت پـه وړانـدي پـه هـوايي يـا مځکنـي ډول را وړانـدي سـي صـرف مجاهـدين وه ،چـي پخپلـه دافغـان دولـت او روسـانو سـره ميـل پـه ميـل پـه جګړه اخته وه .

ددې ترڅنـګ دپاکسـتان او ايـران هيوادونـو هـم جرائـت ونسـواى کـړاى ،چـي دافغانسـتان پـر حـريم ددوئ الـوتکي تـر سـرحد را واوړي او يـا دي هـم دروسـي ښـکاري الوتکـو پـه وړانـدي دپاکسـتان لـه خـاوري بريدپروسـي روسـان دپاکسـتان او ايـران لـه اړخـه دهغـوئ لـه خاوروڅخـه دخپلـو الوتکوپـه اړونـد بـاوري سـول ،چـي دافغـا نسـتان دا ګاونـډي هيوادونـه زمـوږ سـره پـه مخـامخ جګـړه کـي ځانونـه نـه ښـکېلوي ،ځکـه يـي دڅلويښـتم لښـکر دقطعـاتو پـه تشـکيلاتي اړخ کـي دلږوالـي او ډېـر والـي پـه اړونـدڅو ګامونـه لنـډ واخيسـتل ،چـي دا پخپلـه دشـوروي اتحـاد پـه نظامي پاليسۍ کي يو ښکاره بد لون• و .

ددې بـدلونونو درك هغـه وخـت را څـر ګنـد سـو ،چي کلـه دشـوروي اتحـاد دلـوی درسـتيز نماينـده پـه کابـل کـي ديـوه پـريس کنفـرانس پـه تـرڅ کـي دهمـدې کـال داکتـوبر پـر

---

وګ افغان مېړانه او غميزه دروسي جنرال لياخوفسکي اثر ۴۰۱ مخ•

۱۴ نېټه وویل «علت عودت قطعات محدود شوروي در نتیجه ثبات اوضاع افغا نستان امکان پذیر گردیده است، قوای جمهوري دموکراتیک افغا نستان تجارب جنګي را دربرابر ضد انقلاب (مجاهدین) از قوای اتحاد شوروي مې اموزند در حال حاضر انهاقدرت دارند که عملیات نظامي را بطور مستقیلانه انجام بدهند»* دهمدې یادي خبري په تعقیب روسانو له افغانستانه ځخه د ۶۰۰۰کسیز هوایي مدافع ځواك دشپږو کنډکونو دایستلو دپرېکړي په پلي کولوسره د۱۳۶۵ لمریزکال په مني کي له افغانستانه وایست

داپه افغا نستان کي شوروي اتحاد دلښکرو دوتلو لمړی مرحله په نخښه کوي پر دې بنسټ ،چي دشوروي اتحاد دضدارخونو لخوا که څه هم تر دې مهال کوم رسمي طرحه امر او شرایط نه وه اېښودل سوي .یوازي یې له افغانستانه دهغوئ پر وتلو سخت ټینګار کاوه ،چي ددې افتخار ویاړ دملل متحدنه ،بلکي دمجاهدینو ویاړ و هغه په دې معنې ،چیتر دې مهاله بیله کومي طرحي دمجاهدینو په زوردوئ ووتل دې کړني پر جانب مقابل اړخ «امریکې متحده ایالتونو، عربي او غربي نړی» ځکه څه اثر ونښنده ،چي هغوئ ته یې دشرایطو اېښولو

* وګ شفق مجله«۲۶مخ» دوهم دوره درمه ګڼه ۱۳۶۵ لمریز کال

اومـداخلې فرصـت پـه لاس ور نـه کـړ، خـو پـه افغانسـتان کـې دروسـانو او کابـل رژيـم پـه وړانـدي دمقاومـت او جهـاد اصـلې مهـرې ((مجاهـدينو)) تـه يـې نـور جـرات ور باخښـه او هغـوى دې تـه پيـاوړې سـول ،چـې لانـور هـم خپلـو ضـرباتوته پيـاوړ تيـا وربخښې او مقا ومت نور هم توند سي.

# تسليحاتي مسابقه

داسـيا پـه زړه کـې پـروت هيـواد افغانسـتان چـې دجيـو پولتيـک اړخـه يـې دتـاريخ پـه اوږدو کـې دورېښـمو او لارجـوردو دلارو دچـوک حيثيـت درلـودلی دی . دوخـت او زمـان شـرايطو او پـه سـيمو کـې دمـادي ابـر قـدرتونو تـر مسـتقيمي او غيـري مسـتقيمي اغيـزي لانـدي را تـلې يـې ددې لامـل دی ،چـې پـه خـود کفـی ډول ځانتـه يـو پيـاوړئ نظـامي استحکام ونه لري .

ددې اسـتحکام پـه نـه موجوديـت دا هيـواد اړ دی چـې پـر پښـو د دريـدو لپـاره مـادي ابـر قـدرتونو تـه لاس واچـوي او تسـليحاتي څـه ځينـي تـر لاسـه کـړي ، دا پـه مکمـل ډول هـم دمننـي وړ نـه ده، چـې مـوږ دې تـر اوسـه پـوري خـود کفـي سـوي نـه يـو بلکـه دشهنشـاه محمـود هوتـک پـه دوره کـې دزمبورکـو توپونـو جوړښـت ددې جوګـه سـوی ،چـې دا هيـواد دې يووخـت دخپـل ځانـه پـه تسـليحاتو اړخ کـې بسـيا وي ، حتـې تـر دې چـې

دپیاوړي افغان واکمن امیر شېرعلي په دوره کې افغانستان ددې جوګه سوی، چې تر افغانستان دباندې داسترالیا هیواد ته دافغانستان دنظامي فابریکو جوړل کړل سوي توپونه صادر کړي .

زموږ دالاسته را وړنې محدودي دې دوخت دواکمنانو دهوښیارتیا او بر ځان دبسیا توب ښې نمونې په لاس را کوي . کله چې دنولسمي او شلمي پېړۍ خبره کوو نو دا روښانه کوي چې د دوهم نړیوال جنګ تر ختم وروسته دنړۍ دوه قطبي توب د ((متحدینو او متفقینو )) له اړخونو څخه په بل رنګ واووښت متحدین مات او متفقین تر بریا وروروسته پر دوو برخو ووېشل سول چې په پایله کې یې د ((وارسا او ناټو)) پکتیونه را منځته سول .

په افغانستان کې هم ددې دوو ترونو تر منځ درقابت لړۍ په مشروطه شاهي دوره کې را پیل سوه. دوخت واکمن محمد ظاهر خان غوښتل دافغانستان دپخواني واکمن سراج ملت والدین امیر حبیب الله خان دبېطرفۍ تګلاره له ځانه سره ولري او په دې توسن یې دوخت په لړ کي دلویي جرګې له لاري خپل بې پرېتوب وښود او دا هیواد یې دغیر منسلکو هیوادونو په لړ کي نړیوالو ته ور پېژاند ، خو دپخواني شوروي اتحاد سره د ګاونډي توب ، دترانسپورټ اسانتیا ، غیر زروي توب ، ارزانه قیمت دا

زمینه برابره کړه ،چي دنورو هیوادونو په پرتله کلکي او مقاومت لرونکي کوچنی اسلحې تر لاسه کړي .

دلویو اسلحو په اړخ کي بیا خبره داسي نه وه تر ډېره ډېري لویي اسلحې ددوهم نړیوال جنګ څخه وروسته زاړه او کارول سوي ټانګان ول ،چي په ډېره فیصدي سره افغانستان دقراردادونو په لړ کي ځیني واخیستل .

دیادو قراردادونو موجودیت ،چي دشاهي افغانستان دمشروطه شاهي حکومت له خوا له روسیې سره وسول په څو اړخه کي دافغانستان لپاره په تاوان کي ول .

1) افغانستان دیوداسي جګړي لپاره دومره تابیا ته ضرورت نه درلودچي دخپل کښته اقتصاد او نه صنعتي توب په صورت کي داسلحې دومره خریداري وکړي چي پخپل بودجه کي دهغوئ دقرضونو دپوره کولو په کلونو کلونو تر عهده ووزي او په پایله کي دیوه لوی مادي ابرقدرت تر سیوري لاندي راسي

2) افغانستان په ګاونډ کي یونوی تاسیس سوئ هیواد ((پاکستان)) درلود چي دنړیوالو په چوکاټ کي دناټو له

خوا په افغانستان کي دشوروي اتحاد درامنځئته یوه هډه بلل کېدای سوای .

نړیوالو په سره سینه اوږد مهاله جګړه کي دشوروي اتحاد را ښکېل کول په څو اړخونو کي لاژم بلل .

1. ددې لپاره چي شوروي اتحاد په دوامداره ډول دشوروي اتحاد په دننه کېدو دنظامي سوي صنعت هغه اصلي جوله را منځئته او په نړۍ کي دکمونیزم دممکنه پراختیا دمخنیوي په خاطر دهغوئ دجوړوسوو اسلحو کاپي واخلي او په وړاندي یې ددفاع په مورید پیاوړي اسلحې جوړې او تنظیم کړي .

2. ددې لپاره چي شوروي اتحاد په دوامداره جګړه کي ښکېل وساتي او دنوو انکشافاتو مخه یې ونیسي .

3. د دریمي نړۍ خوارځواکي هیوادنه یې تابع او په شوروي کمونولډ کي داخل نسي او په دې سره وارسا دپکټ دپراختیا او موډرنیزه کېدو مخ ونیسي .

4. دشوروي په راښکېل کېدو سره دهغوئ دنور مال اقتصاد وتزلزل ته لاره پرانیستل

سي او دناټو پکتې په وړاندي اقتصادي توازن له لاسه ور کړي .

5. نړۍ تر ابده دکمونیزم دمفکورې او حاکمیت څخه وساتل سي .

شورویانو دخپلو شوراګانو دکلیدي مرکز روسیې او سیاسیې بیرو غړو او سر کرده ګانو دا ټول پورته موارد دشوروي اتحاد په وړاندي درک کړي ول . په همدې توسن یې کوښښ کاوه چي دمرکزي اسیا دخپل جنوبي ګاونډ هیوادونه داسي پیاوړي کړي چي دپورونو دپوره کېدو لپاره داسي چاري پر کارواچولې چي بیله په شوروي کمنولډ د داخلېدو پرته بله چاره ونه لري ،ځکه یې نو دیادو سیمو تر څنګ دحساب سیمه افغانستان وباله .

افغاني مشرانو هم له دې فرصت څخه په ګټه کوښښ کاوه چي هیواد په تسلیحاتي اړخ کي پیاوړي کړي . روسانو دافغاني لوریو څخه داسلحو غوښتنه دځانه لپاره دتطمیع کولو ښه فرصت وباله او دافغان حکومت غوښتنو ته دمثبت جواب تر څنګ یې په شوروي اتحاد کي افغانو محصلینو په نظامي او ملکي برخو کي زده زمینه برابره کړه . هیله وه چي نوموړي به دملتپالني په روحیه سمبال افغانستان ته راسي برعکس لېږل سوي محصلین په

کمونیستي مفکوره سمبال او دروسیو اسلحو په استعمال پوه افغانستان را ستانه سول .

دنومورو کسانو دا ډول روزنه ، ددولت لخوا دهغوئ نه تشخیص او په وړاندي دهیواد داخل کي دملایانو او طریقت موریدانو ، په مصر کي دالاظهر دروزل سوو اخوانیانو ،او په کابل پوهنتون کي دمسلمان جوانانو ټولني موجودیت دچپي او راستي سازمانونو تر منځ تقابل او ټکرونه ددې لامل ول، چي افغانستان دبې ثباتی پر لور ولاړ سي .

شاهي نظام خپل حاکمیت ټینګ نه کړای سوای، په شوروي کي روزل سوي نظامي اوملکي افسران پر دې وتوانېدل چي دشاهي خاندان په دننه کي دشاهي کورنۍ دخلګو پر زړونو کار وکړي په شاهي کورنۍ کي شهید سردار محمد داؤد او ددې کورنۍ څخه دباندي محمد حسن شرق دځان مله اومخکښان وبولي.

افغانستان له غیر منسلکتوب څخه د انسلاک پر لور ورکوږ او همدا وو چي په روسیو اسلحو سمبالو د۴۴۴ پراشوټي قومندويي قطعې په توسط دا ؤد خان واک ته وروسوی .

داپه دې معني نه ده چي شهید سردار محمداؤد خان یو مفکوروي کمونیست وو. بلکه هغه رښتونی افغان

وو خو دهغه خوشباوري او په اوردو کې دیادو سرتېرو موجودیت ددې لامل سوچي دا کار همداسي تر سره سي .

ددې دوارو بلاکونو غیر مستقیم ټکر په اسلامي نړۍ کي تقابل ته سره ودرېد همدا وو چي دسرې جګړې او اسلحو د مسابقې لړۍ افغاني سیمي ته مخه کړه .

په افغانستان کښي دفقيدمحمد داؤد خان تر واک ته رسېدو او کښته کېدو او د ثور کودتا په راتلو سره داسیا په مرکزي سیمو کي روسي وسلې په تدریجي ډول را منځته سوې . سره تر دې چي دګاردنیزیونو او مهمو دولتي ارګانونو دساتني لپاره به موډرن کلا شینکوفونه موجود ول ،خو په عامه ډول د کمونیستو واکمنانو((نور محمدترکي او حفیظ الله امین)) په دوره کي د((پېپه شې)) په نوم پر بزګرو، کاریګرو،وطنپرستانو او دولتي سر تېرو همدا اسلحې ووېشل سوې .

یادو وسلو دتیت کیفیت له امله تر ډېره دوام ونه کړ . دولتي او حکومتي غړي دهمدې هیواد پرګنو اوسېدونکي ول مخالف اړخ یا پاخونکوونکي هم ددې هیواد ول او یو له بل یې پېژندل.

چریکي عملیات پیل سول ، چریک کسانو هم په لمړي ځل دپلرونو دپخوانیو بالاژن ،مشکوشو، او کمر شکنو ښکاري توپکانو په استعمال همدا پېپه شې تر لاسه

کړې چې په دې سره په خفیفه اسلحو ددولت د غړو او مخالفینو انډول تقریباً دخلقي حکومت لپاره سرخوږئ سو. همدا لامل وو، چې دواکمن نظام ساتونکو کلا شیکوفونو تر اوږه کړل .

دشوروي لښکرو په راتلګ سره په افغانستان کې جګړې زور واخیست او هر پایله پر دې منتج وه ،چې هره نوې اسلحې ددولتي ځواکونو په واک کې ور کول کېده په ډېر لنډ وخت کې هغه مجاهدینو تر لاسه کوله .

دمخالف اړخ په تش لاس ددې پیاوړتیا په پایله کې نړیوالو داتشخیص کړه چې که سبا نوموړې ادزادي غوښتونکې خپلواکې تر لاسه کړي دنړۍ داحسان تر جغ به نه وي لاندي همدا لامل وو چې دشوروي لښکرو تر راتلګ یو کال وروسته دمصر واکمن ((انورسادات)) اعلان وکړ چې دافغان مجاهدینو ورې اسلحې په موږ اړه لري چې په دې سره روسۍ ډوله مصري جوړ کلاشینکوفونه را وړاندي او دمجاهدینو په واکې یې ور کړل .

دې کړنې دنورو عربي هیوادونو پر پالیسو مثبته اغېزه ونه کړه ، هغوی په یوه لړ دافغان شوروي جګړې په وړاندي دخپلي ونډي برخه کمه احساسوله او په بل اړخ کې دعرب ځیني غیر منسلک هیوادونه دمصر تر دې شعاع

لاندي راتلل . ځکه یې نو دمصر ددې کړنو دوام خوندور نه باله .

وخت داسي عیار وو داسلحو مسابقې دا سیمه پر سر واخیسته . نه یوازي په افغانستان ،بلکه دایران او عراق تر منځ خپل منځي جګړه هم دروسیو اسلحو دراوړاندي کېدو یو ښه رونق ورکړ چې دامهال نو خپله ستندرد روسی وسلې چي دروسیې او کیوبا او بل یې دوهم لاس وي چي دچین ، مصر ، فدرال المان او وزیرستان دتېرا ساخت وي دخلکو لاسونو ته ولوېدلې .

په دې وخت دافغانستان په هیواد دننه او باندي کي اوازې خپرې سوې چي مصر یعني جامع الاظهر ، جامع الازهر یعني اخوانیان او اخوانیان یعني افغان مجاهدین. حال داچي دمصر واکمن انور سادات پخپله دپان عربیزم دمفکورې پیرو او غوښتونکی چي په دې کي یې هم دیوه ملت په توګه هڅه وه چي مصر دعرب لیك دهرم په راس کي قرار ولري او دعربي هیوادونو سرلاری واوسي . چي دا مفکوره داخوان المسلمن دمفکورې سره توافق نه درلود هغوئ دعرب لیك په عوض دسید جمال الدین افغان دمفکورې پیرو او دا یې باور وو چي داسلامي نړی تر منځ یووالی باید دصدر اسلام ددورې ممثل واوسي چي تفوق باید یوازي پر تقوی او کار کولو متمرکز وي .

دهیواد په دا خل کي هم داوخت دروسيو لښکرو په وړاندي مخکښ ګوند حزب اسلامي بشپړ اخواني رنګ نه درلود هغه یو اسلامي ملي سازمان وو چي دسیدالجمال الدین افغان «کابل پوهنتون» له غبرګ را ټوکېدلی وو خو اخوانیان هغه کسان ول چي په مصر کي يې دمشروطه شاهي دورې پر مهال سکالرشيپونه اخیستي او اوس يې دجهادي جبهې دپراخيتا په موخه دحزب اسلامي څخه په بېلېدلو نوي ډلي جوړولي .

داخوانیت په نوم دمصر دمرستو دا لړۍ تقریباً پيکه او بیا وروسته دعربي هیوادونو په مالي لګښت چینايي وسلې را سر چي دتوزیع لپاره يې دهیواده دباندي دپاکستان او ایران په پولو کي يې دتوزیع لړۍ را پیل سوه .

دمصري کلاشینکوفونو تر څنګ دروسیو الوتکو په وړاندي د«بلو پايپ» موشَکونه هم را غلل هغه دکښته کیفیت مخکنۍ الوتکي چي سرعت يې سوړ وو دنوموړو موشکانو په توسط تر ښکار لاندي راتللې خو وروسته چي دروسیو «سو۱۷» په عوض لوړي الوتکي را منځته سوې پایله يې پر دې منتج سوه نوي روسي ساخت «سوخوۍ» الوتکي د په نخښه کېدو څخه راو ګرځي او په پراخه پیمانه دمجاهدینو مراکز بمبارد کړي .

دبلوپایپ دبې اړرښته کېدو پر مهال چې مجاهدینو دروسي ساخت دوهمه موټه راکټانو په تقلید چینایي ساخت دوهموټه راکټان هم تر لاسه کړي ول چې تر مصریو یو موټه راکټ اندازو یې ښه کار کاوه .

په جګړه کې شوروي زغروالو وسایطو په وړاندي همد راکټان ول . پر اوږ له یوه ځایه بل ځایه اسانه انتقالېدل د ((RPG)) را کټانو تکرار او فعالیته لانه وو بې اړرښت سوی ، چې مجاهدینو ته د ۸۲ملي توپونو وسله دچین په کار خانو کې جوړ سو .د ۸۲ملي متري توپ اصلي اندازه او جوړ له روسیو وسلو څخه وو . خو توپیر یې دا وو چې نوموړي ۸۲ملي متري توپ په روسیو اسلحو یوازي په کوچنیو محاربوي زریدارو ټانکونو کې نصب وو چې دانداخت دتوپ شکل یې درلود خو دمجاهدینو لاس کې دافغاني پخواني جنرال رحمت الله صافي چې دا مهال دملي اسلامي محاذ ګوند دفعالو او مخکښو نظامیانو څخه شمېرل کېدل په نوښت او فرمایش دجوړ ډول داسي ورکول چې د ((RPG))راکټ انداز غوندي بایدپر اوږه له یوه ځایه بل ځای ته انتقال سي .

همداسي وسول نوموړي توپ جوړ او په جهادي ډول کې په لمړي ځل دمحاذملي اسلامي په عوض دحزب

اسلامي حکمتيار لخوا وکارېدل سو چي دوخت په جګړه کي يې مثبتي پايلي درلودې .

په افغانستان کي ددې سرې جګړې په دوران کي چي پر افغانانو تود ناورين وو نه يوازي ديادو وسلو استعمال صورت نياوه بلکه دبمبارد په کچه کي له عادي بمانو څخه خبره تر ارهدې ، خوشيې ، پراشوټي بمانو پوري پورته سول چي د ((ناپالم)) په نوم يادېدل . دبمبارد صورت هم يوازي پر يادو بمانو متمرکز نه وو بلکه په روسيو بمونو کي دشوپرکي مانونو شندونکي بمان هم ول .

ديادو بمانو تر څنګ دنړيوالي جګړې لپاره جوړې غټې او موډرني توغندۍ تر يک ميله ، دوه ميله ، څهار ميله ، او سکر ۲۰ اضافه په اورګانو او سکاډ توغنديو واووښتې چي دجلال اباد دلويې جګړې او خوست دنيوني پرمهال ((سکاډ)) او دکندهار پر محله جات ((اوراګان))وکارېدلې .

په مقابل لوري کي هم ټيټو هاوان ، ۱۲ ميله دستګاه ، تاري او ګرنيټې توغنديو زور واخيست دامهال وو چي دمصري بلوپايپ په عوض په لمړي ځل دامريکايي ((Stanger)) له مځکې هوا ته دالوتکو ضد توغندۍ ورکول سوې چي ډېر موډرني او کاري ويشتونکي وي ، ستهنګر دا خاصيت درلود چي دالوتکي په حرارت پسي به تله او په دې

سره به یې په موښلنځ یا چاودنك سره الوتکي ته سقوط ور کاوه . دستېنګر په رامځته کېدو سره روسانو هم دخپلو الوتکو موډلونو ته نوښت ورکړ وروسته داسې سوه چې نوموړي ستنګر په لوړه ارتفاع کي روسيې جنګي او کشفي الوتکي نسواى په نخښه کولای . غربيانو په ډېره هوښياري خپل سرسخت دښمن په داسي جګړه کي را ګیر کړ چي په خپلو اسلحو يې سقوط ور کړ .

څه کېدل ددې اسلحو دازموينو لابرتوار افغانستان جوړ سو ، غربيانو سره تر دي له ۱۳۶۰ لمريز کال څخه تسليحاتي مرستي ودرلودلې خو ډېري وسلې هغه وې چي يا مجاهدينو له شوروي لښكر او دوخت دحاکم حکومت له سر تېرو په غنيمت نيولي وي او يا هم په وروسته کي له مصري ،چيني ،جرمني هيوادونو تر لاسه سوې او بيا په وروسته پسي يې له امريکي تر لاسه کړې .

## ملي ورغه جوړه

پــه همــدې ۱۳۶۵ لمريــز كــال دشــوروي دلښــكرو دهمــدې وتنــې ســره دقــوس دمياشــتي پــر ۲۰ نېټــه دافغانســتان جمهــورريس ډاكتــر نجيــب الله مســكو تــه سـفر وكــړ او دهمــدې مياشــتي پــر ۲۱ نېټــه پــه ســره مــانۍ كــې دميخايــل ســرګېويچ ګربــاچف لخــوا يــې پــه جوړســوي كنفــرانس كــې ګــډون وكــړ ،چــې پــه دې كنفــرانس كــې يــې دملــي روغــي دطرحــي جزيــات وړانــدې كــړل نومــوړې طرحــه دشــوروي اتحــاد دجمهــورريس ګــور بــا چــوف لخــوا پــه تــودو احساســـاتو بدرګـــه او تائيـــد ســـوه ، ګربـــا چـــف وويل((داميپريــاليزم لخــوا دتپــل ســوي جنــګ پــه وړانــدې تاســې افغــا نــان كــولای ســئ،چې دشــوروي اتحــاد دخلګــو پــه حمايــت دخپــل هيــواد دپــر مختــك او انكشــاف پــه اړ ونــد اړيــن ګــا مونــه پورتــه كــړئ)) • دهمــدې خبــري لــه املــه يــې پــه لمــړي ځــل دملــي روغــي جــوړې اعــلان وكــړ،او ددې پروســې دپيليــدو ســره ډاكتــر نجيــب تــر دې توافــق وروســته عمــلاً هڅــه پيــل كــړه څــو ،چــې دملــي ورغــي جــوړې لــړۍ يــې د۱۳۶۵ كــال دمــر غــومي پر ۲۵ نېټــه پــه دا ســي حالــت كــې پيــل كــړه ،چې پــه ټول افغانســتان كــې نجيــب دولتــي قطعــاتو امــر وكــړ ،چــې نــور

---

وك مسافرت رسمي دوستانه رفيق نجيب به اتحاد شوروي ((۲۴)) مخ

بايد په هيڅ تعرضي جبهه کې قرار پيدا نه کړئ حتی دمجاهدينو لخوا که پر دوئ واړه او سپك وارونه هم وسي لادوئ دي کوښښ وکړ ،چې دمجاهدينو په وړاندي کوم عکس العمل ونه ښيي،چي په دې سره دا ورځ دسولي دورځي په نامه ونومولم سوه.

دې کړني يوه دا سي ورځ را منځته کړه ،چي په ټول افغانستان کي دجدي پر ٢٥ نېټه ددولت لخوا يو ټك هم ونه سو او که سوی هم وي نو هغه به شاذ و دنوموړي اور بند په دوهمه ورځ دکندهار دراډيو تلويزيون دوداني مخي ته ،چي دکندهار هوټل په تعمير کي يې مو قعيت درلود له يوه عسکره څخه دکلاشينکوف ناپامه ټك وسو ،چي وروسته د اړوندو مسئولينو لخوا تر سوال لاندي راغئ .

دملي روغي جوړي دا طرحه ،چي دډاکټر نجيب لخوا وړاندي سو ه نړيوالو مطبوعاتو دميخايل سر ګيويچ ګربا چوف دسولي «پروستوريکا» دطرحي يو برخه وبلله او دا ابتکار يي هم پخپله دشوروي اتحاد لخوا دسولي پر لور دور ماتېدو نخښه وبله .

دملي روغي جوړي دسياست دپلي کېدو دپيل اوپاى لپاره شپږ مياشتي وخت کښېښوول سو ولي په شپږو مياشتو کي يي کومه عمده لاس ته را وړنه ونه در

لــوده •دځینــو میانــه روه جهــادي ګونــدونو دا خلــي قــو مندانان یې تر اغیز لاندي راغلل ځیني قو مندانانو دملي رو غــي جــوړ دسیاســت پــه پلــوئ درا تلــونکي لــوی اختــر دلمــانځني لپــاره کابــل تــه را غلــل او دلتــه یــې د کمونیســت پلــوه حکومــت لــه یوشــمېروکلانو او ســناتورانو ســره یــو ځــای دډاکټــر نجیــب دحکومــت لخــوا پــه را بلــل ســوي پــه اختــري مېلمســـتیا کــي ګــډون وکــړ ډاکتــر نجیــب الله ،چــي داختــر ددي لمــړۍ ورځــي کوربــه و دخپلــوخبرو پــه تــر خ کــي داســي وویــل ((څــو ورځــي ،چــي تاســو پــه مرکــز کــي وی پــه دي خبــره بــه معتقــد شــوي وی ،چــي ملــي روغــه جــوړه دخلکــو دټــولنیز ، سیاســي ، اقتصــادي ، ژونــد پــه برخــو کــي دبنســټیزو بــدلونو او دشخصــیتونو دکــارونو لــه میکــانیزم څخــه عبــارت ده پــه لنډه توګه دخلکو پــه ژوندکي ستر بد لــون او دهیــواد پــه نــوي اساسي قانون کي نوی بدلون دی)) •

---

وګ: افغان مېړانه او غمیزه دروسي جنرال لیاخوفسکي اثر ۳۸۷ مخ •

وګ: دافغانســـتان دجمهــوري ریــس نجیــب الله وینــا ۱۶ مــخ چــاپ کال ۱۳۶۷ المریز •

## دجهادي ګوندونو عمده غبرګون[6]

دملــي روغــي جــوړي دپروســې دپيــل يوويشــت وورځې تـر مخې پـه پېښـورکې پـه دا سې حالـت کې ردسوه ،چې دپېښـور ښـارپه فـردوس نـومي چـوك کې د جهـادي اوو ګونـدونو مشـرانو دووسـوو زروتنـو پـه جلسـه کې دهغـې رد ووايـه دا غونـډه ،چې دسـهار پـر لـس بجـې پيـل سـوه لمـړی وينـا وال يـې اروانښـاد مولـوي محمـد يـو نـس خـالص وو هغـه دخپلـو خبـرو پـه تـرخ کـې وويـل (( اسـلام دسـولې او وروری دين دي ولـي دا سي سـولې نـه يـو چمتـو ،چې يـو ځل يـو سـړی بـل څـوك پـه چـاړه وو هـي او کلـه ،چې بيـا دزخمـي دچاړې وار سي نو لمړی ورته ووايي ،چې سوله ده ))

دوهــم وينــا وال يــې حضـرت صـبغت الله مجـددي و هغـه زياتـه کـړه : (( تـر څـو ،چې پـه افغانسـتان کـې يـو شـرعي نظـام حـاکم سـوی نـه وي نـا ممکنـه ده ،چـې افغـان مجاهـد ولس وسله پر مځکه کښېږدي ))

دريــم وينــا وال انجنيــر صــاحب حکمتيــار و هغــه وويــل: دنجيــب دحکومــت دروغــي جــوړي معنــي داده ،چــې دروســانو تــر چتــر لانــدي دي مجاهــدين پــه يــوه ائتلافــي

---

[6] وګ: جنــګ افغانســتان وشــوروي عامــل پروفاشــي جهــان کمونيزم

حکومت کي دنجیب سره یو ځای کښینئ ،چي لاندي درې ارخه به ولري

1. سره له دې ،چي روسان په افغانستان کي وجود لري مجاهدین باید وسله پر مځکه کښېږدي
2. دموجوده فاسد حکومت تر امر لاندي دمجاهدینو سره یو ګډ نظام جوړ سي
3. مجاهدین په ورښمین تال سره دخپل حکومت په ښکېل کي را ولي او زموږ سپېڅلي مقاومت دتل لپاره له منځه یو سي.

زه ورونو ته ډا ډ ور کوم ،چي دجهاد دپیروزی لحظې نږدې دي په دې اساس تا سي صبر وکړئ، څو بلاخره مو نهایي فتح په برخه وي .

څلورم کس استاد بر هان الدین رباني و هغه وویل : روسان په داسي وخت موږ ته دروغي جوړي وړاندیز کوي ،چي دهغوی ټانګونه او طیارې یې اوس هم زموږ په سترګوتېرېږي .

ددې غونډ ي پنځم وینا وال استاد عبد الرب رسول سیاف و هغه دخپلو خبرو په ترڅ کي وویل:((

زموږقضیه یوازي دروسانو په وتلونه حل کېږي،بلکي ټول هغه څوك ،چي ددوئ سره شریك و، هغوئ مرتدین او له مر تدینوسره جوړه نا ممکنه ده .

شـپږم وینـا وال پیـر سـیدا حمـد ګیلانـي وښـاغلي ګیلانـي وويـل «مـوږ لـه خدايـه سره ژمنه کړېده ،چې پر خپـل دغـه مو قف بـه تر پايـه پاتـه کېږواو دښمن تـه بـه دا فرصت نـه ور کـوو ،چـې مـوږ دې تـوټې کـړي» اووم تـن وينـا وال ددې غونـډې مولـوي محمـد نبـي محمـدي و ،چـې دنومـوړې جلسـې پرېکـړه لیـك يـې ولوسـت : نومـوړې قطـع نامـه پـه اوو مادو مشتمله وه •

دمجـا هدينولـه سـخت عكـس العمـل سـره دملـي روغي جوړې پروسه مخامخ سوه .

## د ډاکټر نجيب الله لاسته راوړني

دکابـل رژيـم ورې پـه لاسـته را وړنـي ودرلـودې ځيني مهـاجر دکمپونـو رادبانـدي او پـه ځينـو ځـايو کـې ،چې تـر اوسـه ددولـت لـه غـاړي وه دهغـو مجاهـدينو پـه سـموکي بيرتـه پر خپـل کـار را غلـل کـوم ،چې دنجيـب ددحکومت سره دملـي روغـي جـوړي دپيوسـتون پـه موخـه پټـي اړيکـي لرلـې ددې روغـي جـوړي لمـړی پـړاو شـپږ مياشـتي و ،چې ورروسـته يـوه کـال تـه وغځېـده ددې يـوه کـال پـه پـا کـې دملـي روغـي جـوړي اړونـدپر«۲, ۱۰, ۱۳۶۶»نېټـه دکابـل دحکومـت

---

ولې الجهاد عربي مجله دريم جلد ۲۹ ګڼه ۴۴ مخ•

لخوا په جوړه سوې فوق العاده غونډه کې دکتور نجیب وویل ((زمان خواهد گذشت وتاریخ همه مسایل را درجای شان قرار خواهد داد اما شکی وجود ندارد سال راکه سرگذشتاندم درخاطره مردم افغانستان بمثابه سال مصالحه ملي ،سال چرخش برای سرنوشت کشور وملت باقي خواهد ماند ))•.

د وړو ګروپونو دقومندانانو اړیکو اودمهاجرو راستنښت لکه ډول ،چې ښایېدله نوموړي پروسې ۵۰% هم ګټه ونه کړه همدا و،چې وروسته بیا دولت اړ سو ،چې دجګړې لاره خپله کړي ؛ بیا یې لوی عملیات پیل کړل .

## دژنیو مذاکرې

دمجاهدینو دمقاومت توندوالې ددې باعث سوه ،چې ملګري ملتونه دافغانستان په قضیه کې ځانونه دخیل وښوي اودسبا لپاره داسې نظام منځته رانسي ،چې یا دایران دخامنیانو غوندي مستقل اویا هم دعراق داداري غوندي خپل سری اویادپاکستان داسلامي جمهوریت غوندي په سمه یوبې ساري مطرح هیواد وي

•وګوری ددکتورنجیب الله ثبت کست (غریبک ارشیف) او بیانات نجیب ۲۱مخ

ځکـه نوروسـانوته ددوئ پـه اصـطلاح دقـانوني وتلولپـاره پـه ژنیوکي دمذاکراتولړۍ پیل کړه.

دژنیومـــذاکرې دوه درې ځلـــي دنامعلومودلایلولـــه رویـه لـه ځنډسره مخ سوې د۱۳۶۲ لمریز کـال دمرغـومي پـر ۱۲ نېټـه دملـل متحـددحقوقي چاروکـارپوه دکابـل دڅرخـي پلـه لـه زندانـه کتنـه وکـړه ،چـي دبندیانولـه رسـمي وضـعي څخـه رپـوټ تهیـه کړ؛تـردې راوړاندیدهمـدې کـال دمرغـومي پـر ۱۴نېټـه دامریکـې دمتحـده ایـالتونود دبانـدینو چـاور وزارت سیاســي مرســتیال اسـلام اباد تـه سـفروکړاوهلته یـې دافغانســتان دقضــیې دسیاســي حــل پـه مــورد دپاکســتان دجمهوریس جنرال ضیاالحق سره وکتل

تـردې یـوه ورځ مخکـې دایـران دسـنامجلس ریـس هاشــمي رفســنجاني دمطبوعاتولـه لارې پـه ډاګـه کـړه ،چـي ایــران چمتــودی لــه روسانوســره لــه افغانســتانه دهغــوئ دوتلوپــه اړ ونــدخبرې وکــړي درفســنجاني ددې څرګنــدوني ســره جوخــت دترکیــې هیــواد داســلامي نهضــت ســازمان دمشـــــرنجم الـــــدین ((اربکـــــان))پـــــه مشـــــري دازادورسنیودژورنالستانودافغانانوســـره دخواخـــوږي پـــه نیـت کنفـرانس دایرکړاوپـه دې کـې یـې لـه روسـانو وغوښـتل ،چي له افغانستانه ووزي

دامریکې ددباندنیو چاروو زارت دسیاسي مرستیال ترځنګ، چي څه ورځ یې اسلام آباد ته سفر درلود په همدې ورځ دشوروي اتحاد ددباندنیوچارو زیر(ایډوارډ شیوارد نادزي) کابل ته راغلی دکابل دحکومت ته یې دستوروکړ، چي یوپلاوي دژنیو مذاکراتوته چمتوکړي

پاکستان داومنل ،چي دوئ به له روسانوسره په دې شرط خبره کوي ،چي دافغانستان دمؤمن ملت دګټوپرتاوان نه وي ، ددلوي دمیاشتي پر ۵ نېټه دملګروملتونوخاص استازي (دیا ګوکور دوویز )لمړی پاکستان ته راغی اودلته یې پاکستان دصدراعظم محمدخان جونجوسره خبري وکړې۱۵ ورځي وروسته بیاافغانستان ته راغی اودلته یې دلوړپوړوچاروواکو سره دژنیومذکراتوپه اړوند خبري وکړې وروسته یې په همدې ورځ پاکستان ته سفردرلود ،چي موضوع دکابل دحکومت ترځنګ دپاکستاني مقاماتوسره شریکه کړي.

دیاګوردوو ویزپه پاکستان کي دپاکستاني مقاماتوترځنګ دمجاهدینوداووتنظیمودهئیت له مشر(مولوي محمدیو نس خالص) سره وکتل درې ورځي وروسته دشوروي اتحاددباندینوچاروزیراسلام اباد ته سفردرلوداوله هغوئسره یې ځانګړي خبري درلودې.

تـــردې یـــوه ورځ وروســـته دشـــوروي اتحـــاد جمهور ریـــس پـــه دې اړونـــد غبرګون وښـــود: کـــه پـــه ژنیـــوکې مجلـــس مثبتـــه پایلـــه ولـــري روســـان بـــه دلسومیاشـــتو پـــه اوږدو کـــې لـــه افغانســـتانه دیـــوه ټـــاکلي مهـــالوېش لـــه مخـــې ووزي خـــو کـــه دا مـــذاکرې ناکـــامې یـــا بـــې پـــایلې ســـې اوکـــه نـــه نورمـــوږ لـــه افغانستانه وتونکي یو

پـــه دا وخـــت کـــې دپاکســـتان اســـتازي زیـــن نـــوراني وویـــل ،چـــې ترهغـــه بـــه دژنیوپرمـــوافقې امضـــاء ونـــه کـــړي ترڅـــــو ،چې پـــــه افغانســـــتان دیـــــوه اســـــلامي حکومـــــت دجوړیدواودهغـــه درســـمیت کارنـــه وي بشپړســـوي دترکیـــې هیـــوادهم دهمـــدې نظرپـــه تائیـــدوویل ،چـــې پـــه افغانســـتان کـــې بایدیودخلکو نظام را منځته سي

دســـلواغې پـــر ۲۸ نېټـــه دافغانســـتان پخـــواني پاچـــا محمـــــد ظاهرخان دایټـــاليې پـــــه پلازمینـــــه روم کـــــې خپلـــــه چوپتیاماتـــــه کـــــړه او وې ویـــــل: ،چې سمدســـــتي چمتونـــــه دئ ،چې دافغانستان مشرتابه دې مؤقتاً پرغاړه واخلي

دحـــوت پـــر ۲ نېټـــه دایـــران روحـــاني مشـــر(علي خامنـــه ئـــي)پـــه افغانســـتان کـــې دافغـــان مجاهـــدینو دحکومـــت پـــر جوړیـــدو ټینګـــار وکړدحوت پـــر ۵ نېټـــه دامریکـــې دمتحـــده ایالتونواســـــتازي(ارماکوست)بیاپاکســـــتان تـــــه ســـــفروکړاو هلتـــه یـــې دمجاهـــدینودپلاوي دمشـــرمولوي صـــاحب خـــالص

سره بیا وکتل ترد پراوروسته مجاهدینو خپل داووه ګوني اتحاد مشر حکمتیار وټاکه او هغه په هر ډول په ژنیوکي دکابل رژیم له استازوسره دمخامخ کښېنستلو خبره ردکړه

دنوموړي د رد څخه درې ورځې وروسته دحوت پر ۲۹ نېټه ډاکټرنجیب الله دیوه فرمان په ترڅ کې دافغانستان په ټولولیواو ورواداروکې دمارکس، انګلز، ستالین اولینن دعکسونو دراټاکولواوله منځه وړلوامرورکړ.

ددې سره جوخت څوورځې راوروسته داردن پاچا (ملك حسن) پاکستان ته سفر وکړاو دخپل سفرپه ترڅ کې یې له پاکستاني مقاماتووغوښتل، چې دژنیودخبرودځنډ دله منځه تللو په اړونددي له ملل متحدسره مرسته وکړي ترڅو دملګروملتونوترچترلاندې دژنیومذاکرات بیرته له سره پیل سي، همداوو، چي یوه اونۍ وروسته دژنیومذاکرات دمجاهدینودګډون پرته پیل سول ددې خبرواترودپیلېداسره دمجاهدینویو پلاوی دامیرحمزه په مشرۍ داسلامي کنفرانس په غونډه کې ګډون وکړددې ترڅنګ رونالډریګن دامریکې جمهور ریس په ټلیفون کې دپاکستان له جمهورریس جنرال ضیاؤالحق څخه غوښتنه وکړه، چې دژنیو دمذاکروپه اړ وند دخنډونوپه لیري کولوکي همکاري وکړي همداوو، چي پاکستاني سرپرست

لـومړي وزیـر زیـن نـوراني وویـل : مـوږ دامریکـې دمتحـده ایالتونوتائیدپرتـه دمجاهـدینو پـه اسـتازیتوب دژنیوتوافـق نامه امضاکوو ؛

دمجاهدینوداتحادمشـــــــــــــرانجنیرحکمتیاردیوه مطبوعـاتي کنفـرانس پـه تـرڅ کـي دپاکسـتان پـه غبرګـون کـي وویـل : مـوږ چاتـه اجـازه نـه ورکـوو ،چي دمجاهدینوپرتـه دي دمجاهدینو په استازیتوب دژنیو مذاکرې لاس لیك کړي

دروســـــانودپورته تصـــــمیم ســـــره ،چـــــي نورلـــــه افغانســـتانه پښــي ســـپکوي ملګروملتونـود ١٣٦٦ لمریـز کـال دجـوزا میاشـتي پـر ١۴ نېټـه پـه ژنیـوکي غونـډه ترسـره کـړه ، پـــه دې غونـــډه کـــي دشـــوروي اتحـــاد ،امریکې متحـــده ایالتونو ،پـا کسـتان هیواداوافغانسـتان دحکومـت اسـتازوته دناســـتي بلنـــه ورکولـــه ســـوه خـــو دجګـــړې اصـــلي جبهه((مجاهدین))لـه صـحني ګوښـه اوډکـوم ګـډون چـانس یـې ورنـه کـړ دا هغـه وخـت و ،چـي څـه مـوده مخکـي پـه همـدې ژنیـــــوکي دشـــــوروي اتحـــــاد او امریکـــــې دمتحـــــده ایالتونوداســـتازوترمنځ دترړلـــو درواوزو تـــر شـــاه پټـــي خبـــري سوي وې.

څـه مـوده پـس د١٣٦٧کـال پـه حمـل کـي دشـوروي، امریکـايي پاکسـتاني اودکمونیسـتي هیوادونـو داسـتازوتر مـنځ پـه ژنیـو کـي بیـا خبـري وسـوي اودخبروپـه پایلـه کـي

دشـــوروي اتحاد دځلو ښـــتم لښـــکردلګیو وتـــل دنهـــو میاشتو په لړ کې پلان سوه

،چـې دوتلـو نېټـه د۱۳۶۷ لمريـز کـال دجـوزا لـه ۲۶ نېټې څخـه دهمـدې کـال دسـلواغې تـر ۲۶ نېټې پـوري تعـين سوه.

پـــه ملـــل متحـــدکې دشـــوروي اتحـــاداوامریکې دپـلاوي ترنظـر لانـدي پـه پنځومـادوکې دافغانسـتان دخلـق دموکراتیـــک حکومـــت اوپاکســـتان اســـلامي جمهوریـــت تـرمنځ لاسـلیك سـوه ،چـې مختصـره طرحـه يـې پـه لانـدي ډول ده

1. ددواړو هیوادونـــوترمنځ بـــه راتلـــونکي یولـــه بلـــه پـــه دواړوهیوادونـــوکي دنـــه مـــداخلې پراســـاس ولاړه وي((یـــو دبل په چاروکي به مداخله نه کوي))

2. دا مـــاده لـــه دوولســـوفقروڅخه متشـــکله ســـوې وه ،چـــي عمـــده ټکـــي يې((یـــوتر بلـــه ملـــي حاکمیتونوتـــه درنـــاوی،دیواو بـــل لـــه حقـــه نـــه محرومیـــت،دهرډول قـــوې او اســـلحې دکارېـــديني پـــه موخـــه یـــواو بـــل تـــه نـــه تهدیـــد ، داقتصـــادي او فرهنګـــي مســـایلوپه اړ وند دعـــدم اخـــتلال مـــد نظرنیول،لـــه هـــرډول مســـلحي مـــداخلي څخـــه یودبـــل پـــه چـــارو کـــي ډډه،دهـــرډول ســـبوتاژمخنیوی،یودبل پـــه هیوادنـــوکي دافوزیسیونودغیرمســـلح تشـــويق نـــه موجودیت،پـــه وســـله

بانـــدې دمخالفینونـــه تجهیز ،لـــه پروپاګنـــډه لاس اخیســـتل، او دنورو مهاجرونه منل پکښې شامل وه.

3. دا پرېکـــړه لیـــك د۱۳۶۸ دجـــوزا دمیاشـــتې لـــه ۱۵ نېټې څخه مورد اجراو.

4. دواړواړخونـــه مکلـــف وه ،چـــې ددې پریکـــړه لیـــك ددوهمې مادې په ټولواړخونو به عمل کوي

5. دا پرېکـــړه لیـــك پـــه پښـــتو ، انګلیســـي او اردو ژبودملګروملتونوپه سازمان کې ساتله کېږي

وروسـته ددې پرېکـړه لیـك پـه لاندې مـتن کـې دافغا نســـتان اوپاکســـتان ددبانـــدنیوچارودوزیرانولاس لیکونـــه سوي دي .

دشـــوروي اتحادلښـــکري دمهـــالوېش ســـره ســـم پـــر ټـاکلې نېټـه خپلوتـل پیـل کـړل اوپرټـاکلې نېټـه یـې پـای تـه وروسول.

# ۱۳۶۵ لمريز کال

## دشورويانواومجاهدينوتېروتني

دثوردنــه پرشــاتلونکي انقــلاب انقلابــي شــعار،چي بــه تــل دافغانوکمونســتانوترخوله راوتــه پــه دې کــال کــي لړزانــده ســودنوروکلونوپه پرتلــه ډېرنــوي څــه دتغيرپــه رنــګ رامنځتــه ســول، دانجنيــر حکمتيــار پــه مشــرۍ نيويــارك تــه دمجاهــدينودهيئت تــلې،د ډاکټرنجيــب پــه مشــرۍ دخلــق ديمــوكرا تيــك ګونــد درهبــري پــلاوي تــلې مســكوته،ملي روغــه جــوړه ، دهغــې پــه ردكــي پــه پېښــوركي دمجاهــدينودلويې غونـــــډې دايرېدل،لـــــه افغانســـــتانه څخـــــه دروسانودپښوســـپكېدودې ټولونوښــتونو،چي ددې كــال لــه سـره يـې سـرونه كښېښـوول سـوه داوپتيلـه ،چـي دروسـانو پـه نـه ماتيـدونكي تصـميم كـي داوخـت يوماتېـدونكي تصـميم لـه ورايـه راښـكاره سـو دا ،چـي ولـي يـې دې كارتـه مخـه كـړه البته دري اساسي عوامل به يې حس كړي وي:

- دمجاهدينونه پخلاكېدونكى مقاومت .
- دروســــــانوپراوړو دمصـــــــارفاتوغيرعايداتي اقتصادي ملاماتوونكي بوج.

- دغربي نړۍ له میډیا وڅخه پرله پسې دشوروي لښکروپه وړاندي دروحیاتوپژمورده کوونکې تبلیغاتي پروسه .

ټول هغه عوامل وه ،چې روسان یې له ماتي سره مخ کړل .

دشوروي اتحاددمرکزي کمیټې له واکدارانو سره دعمراوتجربې په لحاظ، ځکه رهبري پیاوړي وه ،چې ټوله شوروي امپراطوري یې رهبري کوله دوئ دلوړوکچودمدیرانوپه توګه دخپلې پالیسۍ دپلي کولو لپاره اهداف ټاکلای سوای ورسره ترڅنګ یې دمنځینیوکچومدیرانو(وزیرانویادجمهوریتونودریسانو)د اهدافو دپلي کېدو لپاره ستراتېژیک پلانونه جوړوای ، ولي دکښتوکچو دمدیرانو دعملیاتي پلان پلي کېده دځوانوافسرانوسره دافغانستان په دننه کي دجګړې په ډګرکي پیچلې ښکېلتیاوه ،چې دوئ ورسره مخامخ وه اوددې عملیاتي ساحې کړاوونه دکریملین واکمنو نه سوای اټکل کولای .

ددوئ بله تېروتنه داوه ،چې که یې غوښتای بیایې هم دخپلولښکروتر وتلووروسته هم دا سې یونظام ته زمینه برابره ولای سوای ،چې هغه نظام ددوئ دحریفانو((غربیان))په ګټه نه وای هغه په دې معنې ،چې

مستقیماًیې له مجاهدینوسره دیوې کړې ژمنې پر بنسټ له افغانستانه خروج کړی وای او افغانستان یې رسماًجهادي پیاوړوګوندونوته ورپرېښی وای ددې په عوض ،چې دملګروملتونوسازمان وګړېوان ته لاس ورواچوي اودخپلوقوتونوودتلولپاره دیوې قانوني لارې په لټولوسره ځانته قانونیت ورکړي ،حال دا ،چې دې کار نه یوازې نتېجه ورنه کړله بلکې هغه جمله ،چې دوئ به کاروله ((زموږتروتلووروسته به له افغانانوسره زموږ پرځای دهغوئ سره په مځکه کې ښخ سوي ماینونه جګړه کوي) داجګړه نه یوازې دافغانانو په تاوان تمامه سوه بلکې ددوئ تروتلو وروسته ددې اورلمنه تردوئ ورپراخه اودقفقازپه غېږه کې د ،چې،چېن مرکز((ګروزنې)) نازنین ښارداسې جګړوپه لمبوکې راګیرکړ،چې تاریخ یې ترډېره دویرانئ صحنې له ځانه سره ساتي .

په بل اړخ کې دمجاهدینوځخه سخته تیروتنه وسوه هغه په دې معنې ،چې مجاهدینودشوروي اتحاددلښکروپه اړوندسره یوه خوله وه ولې پخپلومنځونوکې دهغوئ دفکري یووالي نه موجودیت دوئ له ستونزو سره مخ کړل ،له میانه روه ګوندونوپرته دجهادي پروسې دوه کلیدي سازمانونه ((حزب اسلامي حکمتیار او جمعیت اسلامي )) له همدې ځایه سره په

کمین کې سول حزب اسلامي افغانستان په هیڅ ګون نه له غیرافغاني نړیوالوقووتونوسره اونه دامریکې له دولتي واکمنانوسره دراتلونکي لپاره سازش کولوته کنبېناست

•

- دجمعیت اسلامي مشراوددې ګوندلوړرتبه افسرانو((انجنیرمسعود))دشوروي اتحاددلښکرواومرکزي کمیټې سره دهغه مخکني ارتباط له رویه ،چې دپنجشیرداوربنددتوافقنامې پر وخت یې ور سره درلود • بیا ترمځکه لاندي یاده کړنه تمدیدکړه :

---

•ددې ګوندمشر حکمتیار په نیویارك دامریکې دجمهورریس رونالډ ریګن سره دملاقات کولو څخه ډډه وکړه او ویې ویل ((چې دئ امریکې ته ددې لپاره راغلي چې دامریکې دمتحده ایالتونوله مسلمانانواوافغانوسیاستوالوسره وګوري تر څو دافغان جهاد لپاره بسپنه را ټوله کړي سپیني ماڼۍته دجهادي رهبرانو په نه ور تلو ریګن اړسو چې له واشنګټن څخه نیویارک ته دمجاهدینو په سفارت کې ورسره ووینې په نومونړې ځای کې حکمتیار ریګن ته له لاس ور کولو ډډه وکړه صرف لفظي روغبر یې وکړ ولي دنورو رهبرانو لاس ور کولو ریګن دې ته را مات کړ چې دحزب اسلامي څخه عکساً دجمعیت اسلامي دسازمان مشر ښاغلي رباني،مولوي محمد نبي محمدي ،حضرت صبغت الله مجددي او پیر سید احمد ګیلاني سره دخپلولو لاره خپله کړي .

ولې ((خاموش مجاهد))دپاکستاني ډګروال محمد یوسف اثر

دا توافق نامه په ۱۳۶۲ لمریز کال کې دروسانو دیو کلن اوربند توافق نامه ده ولې ((ملي اتل له زیږېدوتر شهادته)) •

- دافغانستان په حکومت کې هم دمرکزي کمېټې له غړواوپرچمي فوځي افسرانوسره دجمعیت ارتباطات اوله پوځي خلقي افسرانوسره دحزب اسلامي ارتباطات نوي څه وه ،چې پرستونزومتج سول کله ،چې وروسته دې کړنو ددې ددواړوګوندونومخه ددې په عوض ،چې په ګډپروګرام سره دشوروي اتحاددلښکرواوکابل حکومت په وړاندې ستراتېژي ولري ونه سوه بلکې له همدې ځایه ددې دواړوګوندونوترمنځ سخت اوجبران ناپذیرتېکرونه رامنځته سول پرتهوله جهادي پر وسه دې کړنې منفي اغېزه وښندله،اومتحدصف یې دتجزیې پرلوررهي کړ

که روسانواومجاهدینوپه ګډه ترخپل منځ داسې جوړجاړی کړیوای ،چې دهغه په لړکې دروسانولښکروتروتلووروسته حکومت روسانوپه رسمیت پېژندلی وای اوپه مسالمت امیزه توګه یې کابل ورسپارلی وای،افغانوکمونستانوته یې یاعمومي عفوه اعلان کړې وای اویایې په دباندنۍ نړۍکې دپناه اخیستلولاره ورته هواره کړې وای دلته به ملګري ملتونه هم له ستونزواومنډوترړو خلاص وای .

## دامیني خلقیانوناکامه هڅه

دکــار مــل ددورې پــه ورســتیو او دډاکټرنجیــب ددورې پــه پیــل کــې پــه دولتــي تشــکیلاتوکي دخلقــي افســرانوپراوړوباردپرچمیانوپه پرتلــه دوه چنــده و،هغــه پــه دې معنــي ،چــي لــه یــوه اړخــه څخــه پــه ټولوهغــه اړخونــوکي ،چــي ددولــت دمخالفینومجاهدینوزورزیاتیــده پــه هماغــه انــدازه بــه پــه هغــه سمه کي خلقــي افســران دمجاهــدینو پــه وړانــدي پــه دنــده ګمــارل کېــدل. دوهــم دا ،چــي داوخــت دپــرچم دډلــي واك په لاس کي و ،چي دې کارهم خلقیان ځورول.

دریـــــم مشـــــکل بـــــل داو ،چـــــي خلقیـــــان پخپلومنځونــوکي هــم متحدنــه ول پــه یــوه اړخ کــي دامینــي خلقیانوشــتون و،چــي پــه ښــکاره یــې دحــاکم دولــت رهبــري هیئــت او هــم یــې دترکــي خلقیانوســره ســتونزه لرلــه دامینــي خلقیانوخوځښــت دوئ دي تــه اړکــړل ،چــي دیــوه بــل دا ســي نظــام دمنځتــه تــه راتــګ پــه اقــدام ســي ترڅــو دامینــي تیــري دورې پراشــتباهاتوله ســره تېروتنــه ومنــي پــه هغــې کــي تــرمیم راولــي دمجاهدینودکلیــدي ګوندونوســره پــه ګــډه داســي یــو نظــام جــوړکړي ،چــي ترډېــره خپلــواك او واك یــې دهمــدې هیوادپراکثریــت تېرپښــتنوپرمحورراوګرځي څکــه یــې نــو پــه ۱۳۶۵ لمریــز کــال کــي دملــي دفــاع وزارت پــه ۱۰۹ لمبــر اطــاق کښــي تصــمیم ونیــوه،چي نظــامي اقــدام تــه تیــاری

ولـري ولـي دوئ پـه دې پوهېـدل،چي پـه موجـوده شـرائطوکي داســـتخباراتوټوله دســـتګاه پـــه ځـــانګړې ډول دخـــادپنځم ریاســـت دپـــر چمـــي اوروســـي مکاشـــفینوتر لاس لانـــدي دی ،چـي پـه اسـانه سـره یـې کـولای سـوای ،چـي ددوی پلانونـه رسوا او دځورولولپاره یې نوري پلمې هم زیاتي سي.

پـــه دې وختـــو کـــي یـــوه ډلـــه دکابـــل دحکومـــت لخوانیولـه سـوې وه ،چـي لـه مجاهدینوسـره دتړاوپـه طـور یـې کـو دتـاه کولـه ځکـه نودولـت هـم ددې ډول کړنـو دمخنیـوي پـه ملحـــوظ دزیاتوتدابیروڅخـــه کـــار اخیســـت دخلقیـــانودا تصمیم ترڅه وخته له ځنډه سره مخ سو•.

## مینا ((کشورکمال))[7]

دافغانســتان پـه دې بحـران کـي دنارینـهٔ وو تـر څنـګ پـه ځینـو مـواردو کـي ښـځو هـم دسیاسـت پـه او مقاومـت پـه ډګـر کـي ونـډه واخیسـته ، دا ونـډه دنارینـهٔ پـه شـان مسـلح نـه وه . تـر ډېـره یـې جـذباني او شـعاري بڼـه درلـوده ، چـي پـه سـر کـي یـې دکابـل پوهنتـون محصـلانو شـهیدي ناهیـد وجهیـې ،جمیلـې او نـوري خوینـدي را تـلای سـي . پـه هجـرت او دکابـل پـه حـاکم رژیـم کـي دننـه او دبانـدي پـه څـو اړخونـو کي دا مبارزه فعاله وه :

---

•ویوښتی په هغه وخت کي مطرح افسرډګروال خان محمد خان نورزئ

[7] وګ ((www.danishnama azad.org))

- دکابل په حکومت کي دننه ښځي وې، چې داردو ، څارندوی ، سازمان جوانان او پیش آهنګانو په برخو کي دندي تر سره کولې .
- دګلالۍ او نور بي بي غوندي مجاهدي میرمنې چې مجاهدینو ته يې دشرعي اصولو په نظر کي نیونه سره خدمت درلود .
- د«انجمن زنان مسلمان» په نوم په پېښور او کوټه کي دمیرمنو ټولنه وه ، چې ځانته يې خپله مستقلي مجلې د«المومنات»[8] په نوم عربي او «زن مسلمان» په نوم دري او پښتو مجلې درلودې .
- په کوم جهادي تنظیم پوري نا مربوطي ښځي چې له جملې يې میرمن تاجور کاکړ دساري په توګه یادولای سو .
- «راوا» یا جمعیت انقلابي زنان افغانستان چې سیکولر پروګرامونو ته يې زمینه سازي کوله مشري يې «میناکشورکمال» دډاکټر فیض احمد خانمي کوله.

دې سازمان نه یوازي په ښکاره دوخت حاکم کمونیست رژیم غنده بلکه پر جهادي تنظیمونو يې هم سیاسي او لفظي ګذارونه کول.

نوموړي سازمان په منظم او سیستماتیک ډول دتعلیم اوتربیې تر څنګ په روغتیایي برخو کي خپل

[8] زن مسلمان مجله مربوط حزب اسلامي افغانستان سال ۱۳٦۷

پروګرامونه مخې ته وړل ،چې دملالی په نوم یو فعال نسایي او ولادي روغتون هم درلود . ددې سازمان درهبري پلاوي غړي تر ډېره تعلیم یافته او دکابل پوهنتون پخوانۍ غړي وې . ددې ګوند دغړو له جملې ددې ګوند مشره میرمن مینا ((کشورکمال)) د۱۳۶۶لمریز کال د دلوې پر ۱۵ نېټه دکوئټې په ښار کې داحمد سلطان او همایون په نومونو ددوو تنو لخوا ترور سوه . دنومورې دترور لمړیو کې حزب اسلامي حکمتیار متهم سو ، خو وروسته وښول سوه چې نومورې دوه کسان دافغانستان دملي امنیت په لوی ریاست پوري اړوند وه . دا کسان دپاکستان حکومت لخوا ونیول سول او بیا په ۲۰۰۲میلادي دمې پر ۲۷ نېټه دنومورې حکومت دپوځي محکمې له خوا اعدام سول .

## تر ۱۳۶۶لمریز کال پوري عمده تلفات

سروي وښووله ،چیددې جګړې په جبهه کې په عمده ډول دواړولورو((مجاهدینواوروسانو))ته څومره زیانونه واووښتل ،چې په لاندې توګه یې یادولای سو:

دشوروي اتحادلښکري لمړی له ۵۰۰۰۰خخه و۱۰۰۰۰۰تنوته ترهغووروسته ۱۲۰۰۰۰ تنوته دروسانوپه قول ورسېدې ولې نړیوالو خبري رسنیواوسروې ګانوددوئ دلښکروشمیر له پیله له ۸۰۰۰۰څخه تر ۲۳۰۰۰۰تنوپوري وباله دشورویانوتر تللویوکال ترمخه

دروسي لښکروتلفات په عمده ډول په لاندي توګه ليکلای سو

د۱۸۸ بالــه هيلــي کــوپتروا وجګړييزي جيــټ موډرنوروسيوالوتکو سقوط او له فعاليته لوېدل

۲۱۰۰ چئينــه مــوډرن بيرديم، اتــه ټېره، زريــدار او ۸۲ملي متري توپ لرونکي روسي ټانګانو تخرېبدل

دکابــل پــه ښــاراواطرافوکي درنــې چــاودني او داســـلحودلويوډېپوګانو، چي پـــه خيرخانه، قرغـــه، بګرام اودکندهاردصـــوفي صـــاحب دښـــته کـــي يــې موقعيــت درلودمنفجراولـــه منځـــه تـــلل اود ۳۰۰۰ټنوپـــه حـــدودوکي دباردو چاودنه.

دمجاهـــدينو پـــه اړخ کـــي تـــردې وختـــه پـــوري ۱، ۱ميليونـه افغانـان شـهيدان، چي پـه هرسـاعت کـي لـس تنـه شـهيدان، دهري مياشـتي پـه هرجګړييزسـاعت کـي ۶۶ تنـه لـه هيـــــواده دبانـــــدي وهجـــــرت تـــــه اړ، پـــــه هروځلوروجګړييزودقيقـــوکي يونفرشـــهيد، اوپه هـــرو ۵۳ جګړييزوثـــانيوکي يونفرمهاجرســـوی دی• ددې پورتـــه تلفاتوترڅنـــګ، چـــي مجاهـــدينواوجانب مقابـــل پلوتـــه وراووښـــتي دي مجاهـــدين وتوانېـــدل، چـــي دروســـي

---

•وګ ((دافغانســـتان دسياســـي قضـــيې حـــل اوزمـــوږ دريځ))دانجنيرحکمتيارااثر

لښکر دراتلې له ورځې دهغوئ تروتلوپوري دافغانستان دقلمروپه دننه کې دکنړ،ارزګان او غور دولایتونوپه شمول ټول ۶۴ لوی مرکزونه ،چې ولسوالۍ ورسره وې ترخپل کنترول لاندي راولي

پر همدې کال دجګړې دجریان پرړه دوخت جمهوریس دپاکستان پر جمهوریس جنرال محمد ضیاؤالحق او دامریکې پر متحده ایالتونو واچوله.نجیب په دې اړوند د۱۳۲۷کال داسد دمیاشتي پخپله یو وینا کې وویل «دپاکستان او دامریکې دمتحده ایالتونو واکمني ټولني له یوې خوامکلفي دي هغه نړیوال موافقه لیکونه ،چې دنړۍ دمترقي افکارو دتائید او ملاتړ وړ دي تحقق ورکړي خو له بلې خوا پخپلو پوځي مرستو دپښتور داووګونو مشرانو ملاتړ کوي »•

## دنړیوالو تیروتنه

دملګروملتونوسازمان دژنیودمذاکراتوپرمهال یوستره تېروتنه وکړه په هرصورت دژنیوپه کنفرانس کې دمجا هدینوداستازونه ګډون دومره خطرناکه پایله

---

•وګ «دافغانستان دجمهوریس نجیب الله وینا » ۲۳ مخ د۱۳۲۷کال داسد ۲۵ نېټه دا وینا یې دمیانه روه جهادي ګوندونو دهغه قو مندانانو سره دملاقات پر مهال په کابل کي اورولې وه متن یې زما لیکوال سره په کورني کتابتون کي سته

رامنځته کړه ،چې هڅوتراوسه ټول نړیوال سازمانونه یې دافغانستان دسیاسي قضیې په حل کې پس پاته راوستي داتیروتنه په دې معنی وه ،چیدنړۍ دسرې جګړې اوپه افغانستان کې دسرخوړونکي تودې جګړې اصلي مهره ،چې مجاهدین وه دژنیوپه کنفرانس کې شامل نه کړای سول .یوازې یې دکابل رژیم او دافغانو مجاهدینوپه استازي توب دپاکستان حکومت استازوته بلنه ورکړه حال دا ،چې ځینې جهادي ګوندونه وه،چې هغوئ پرخپلوځانونودویساتوب په موخه هیڅکله پاکستان ته اهمیت نه ورکاوه اوتل به پاکستان اړو ،چې ددوئ په لنګوټه ځانونه نړیوالوته وروپېژني .

ددې سره سره،چې دپاکستان اوافغانستان دحکومتونوترمنځ دژنیوموافقه سوېوه اودهغې په رڼا کې ددواړوهیوادونودحریموپراستقامتونوباندې یودبل له بریده دمخنیوي په موخه کلکه پرېکړه سوې وه ،ولې دپاکستان حکومت ترپایه پردې ونتوانېد ،چې له خپلې خاوري څخه دمجاهدینودتګ لاره ډب کړي همدالړۍ هغسې روانه وه لکه څه ډول ،چیددې تړون څخه مخکې یې دوام درلوددافغانستان حکومت څو ځلې پرملل متحدېغ وکړ ،چې دنوموړي لوظنامې په پام کینیولوسره بایدپاکستان خپل مسئولیت ته متوجه کړي ولې دې

کارکومه اغیزه ونه کړه حتي تردې ،چې دروسانودوتلوڅخه یوکال وروسته لاداکارشروع و،چې لاندې ستونزې یې له ځانه سره ودرلودلې :

- دمجاهدینواوګاونډیوهیوادونوترمنځه دسوؤتفاهم رامنځته کېدل او له پاکستانه دځپلو اسلحو را انتقال
- دنجیب دحکومت اومجاهدینوترمنځ پېچلي مسئله نوره هم ترینګلې کېدل

## دارغنداب لویه قوه

د ۱۳۶۷ لمریز کال په پسرلي موسم کې دکندهارارغنداب ته دروسانو دا اتمه لویه قوه وه ،چې دمجاهدینو دتصفیې لپاره را ووتله .اهمیت یې په دې کې و،چې روسانو داد خپل بخت دازمویلو وروستی چانس په افغانستان کې باله دوئ مصمم وه ،چې ددې قوې په بریالیتوب کې به په افغانستان کې ددوئ شتون حتمي او که له ماتې سره مخ کېږي ،نوپه نظامي ستراتیژي کې به یې تغیر حتمي وي .

په دې قوه کې ځانګړې روسي ،کیوبایي،دافغانستان دموکراتیکه اردواوځارونددوی قوتونه و . چې دکندهارقول اردوقومندان محمد جمعه اخلګ و.هغه ځوځلي داخبره کړې وه ،چې ((په هرات کې یې پښه بایللې اوپه کندهارکې به سربایلي خوداخلګ بایدپر

لارسي ))ځکه نو ددې کاردکړني لپاره یې دارغنداب دټولوستراتېژکونقاطوکوم ،چې په هغې کې دحزب اسلامي ، جمعیت اسلامي ، مولوي خالص حزب اسلامي عمده او نوروجهادي تنظیمو وړې ډلې پرتې وې دځېلولپاره پریوه متر مربع یوه یوه توغندۍ پلان کړه اوجګړه لمړئ دخسرو،کوهک او چارغلبې له کلیورا پیل اوبیاوروسته ټول ارغنداب ته وغزیده .

نږدې تر ۳۹ورځوزیات وخت یې ونیوی دجګړې دپیل په لمړیوکي ددموکراتیکي اردودوه غټه کتله سرتیري دارتباط له لاري دسرکاتب شهید مل په مشرۍ د((شهیدحاجي محمودجبهې ))ته تسلیم سول ،چې دپیر پایمال،کاغانك شېرجادې له لاري دنومورې مرکز دکندهاربنارجنوب غرب پلوته پروت دغاتروتربندتیراوماهې ته وروسول سول .

وروسته دتسلیمۍ په لړکي دنومورې رواني جګړې ترپایه دوه نیم زره عسکرله مجاهدینوسره یوځای سویوه دروسي ځانګړوقوتونواوکیوبايي قطعې په وړاندي مجاهدین هم له سختوستونزوسره مخ سول ؛آن تر دې ،چې دنومورې معرکې لوړقومندانان په ځینو مواردو کې دروسانوترمحاصرولاندي راغلل هغوئ نه سوای کولای ،چې پریوه ځای له (su27) الوتکواوپر مځکه له

نوموړوقوتونو سره وجنګېږي .په مځکني انداخت کې اوراګان ، اوسکر ۲۰ توغندیو پرله پسې انداخت نور هم ستونزمن کړی و.

دنوموړي جګړې حالت ماته لیکوال ته دیوې پوښتني په لړ کې خان محمدمجاهد ،چې ددې معرکې یوقومندان و دا سې وویل((معلم صاحب :په لمړیو ورځوکي ،چې جګړه پیل سوه ټولي درختي شنې وې کله ،چې نوموړې جګړه پای ته ورسېده موږ فکر نه کاوه ،چې داموسم دپسرلي اودوبي دی ځکه ټولي درختي دمرمیووارونو دا سې کړي وې ،چې پاڼې تري رژېدلي اوتابه ویل ،چې دمني موسم دی))ددې جګړې دشدت او په ځینوسمو کې دمجاهدینودقومندانانودمحاصرې په اوریدوسره دملامشك په نوم دسعدیې جبهې یومخکښ جهادي قومندان یوه اویاکسیزه فدایي ډله جوړه کړه ترڅو ،چې بېله دوه اتیاملي متري توپونو اوګرنوف ثقیلانو بل څه نه وه ورسره. دنوموړي پرله پسې بریدو په وروستیوورځوکي نوموړې قوه دې ته اړه کړه ،چې بیرته دکندهاربنارا وخپلوبارکونوپرلورعقب نشیني ته مخه کړي داکاردمخامخ جګړې په پرتله ډېردروند تمامېدی همدالامل و.

ددموکراتیک حکومت دملي دفاع وزیر، لوی درستیز او دشوروي دځلوېښتم لښکرعمومي قومندان اړسول، چي صحنه له نژدې وګوري خوله کندهاره ځخه دبیرته ستنیدوپرمهال یې محمدجمعه اځك له ځانه سره کابل ته بوت او دنوموړي په عوض یې دملي دفاع وزارت ورزیده جنرال ارکانحرب محمد آصف شورد کندهاردد وهم لمبرقول اردود قومندان په توګه راووست نوموړی پر دې وتوانیدو، چي دتلفاتوپه زغملوسره له ارغندابه قوه را وباسي.

## تبادله

دمجاهدینو په پرتله دافغان حکومت او شورویانو سره بندیان ډېر موجود وه هډو دهر ولایت په اړتون ((محبس)) کي تر ۵۰۰تنو زیات بندیان ساتل کېدل ځکه نو ددروسانو او کمونیستي حکومت په پرتله ولس او مجاهدینو دخپلو بندیانو درا ایلو کېدو زیاته تلوسه در لوده .

همدا وو چي په ۱۳۶۳ لمریز کال کي دپروان په ولایت کي دحزب اسلامي داجراییه شورا غړی له روسانو سره تر تفاهم وروسته روسانو یونفر مجاهدینو ته دحسن نیت په خاطر را خوشي کړ .

تـر دې وروسـتـه پـه دوهـم پـه کنـدهار کـي دحـاجي سـرکاتب شـهيدمل دجبهـې پـه نوبـت لـه روسـي عسـکر سـره دهغـه وخـت دمجاهـدينو دمحکمـې قاضـي مولـوي محمدصابر .

وروسـتـه دحـاجي ظـابط عبـدالجليل او دکنـدهار د ۲لمبـر قـول اردو دصـاحب منصـب داړيکـو پـه پايلـه کـي دوخـت مشـهور قومنـدان لالاملنـګ او بيـا وروسـتـه دکنـدهار دميـر بـازار پـه سـمه کـي د ۱۳۲۷ لمريـز کـال دميـزان پـه مياشـت کـي سـيد عبـدالباقي ((اسـلام مـل)) لـه روسـيو بنديانو سره تبادله سول .

## د۱۳۶۷ لمريز کال ددلوې ۲۶ نېټه

دشـوروي اتحاددلښـکروماته پـه افغانسـتان کـي دافغانومېړنومجاهـدو زامنـو پـه مـټ ځرګنـده سـوه ،ولـي نړيوالوهيوادونودانـه سـواى زغمـلاى ،چيـددوهمي نړيـوالي جګـړې داتـل طاقـت تـه دمـاتي ور اړولـودا اتبکـاردي يـوازي دافغـان مسـلمان مجاهـدولس پـه برخـه وي ځکـه نودملګروملتونودخـانګړي اسـتازي(( دياګوکوردوويز))پـه مشـرى دروسـانودقوتونودوتلو پروسـه ديـوه توافـق دترلاسـه کولولپـاره هلـي ځلـي پيـل سـوې ((،چـي عمـومي شـرح يـې

ددې کتاب په لړکې لولی» دشوروي اتحاد جمهور ریس ګرباچف نړیوالوته دمطبوعاتوله لارې څرګنده کړه ،چې:•

- موږ په افغانستان دتل لپاره پاته کېدونکي نه یو
- زموږ لښکري به ډېر ژر له افغا نستانه ووزي
- دافغانستان دسیاسي قضیې حل نژدې دی

میرصاحب کاروال ،چې په همدې وخت کې دکابل دحکومت یو فعال غړی وو وایي:

«ګورباچف یك هیئت عالي رتبه به مسکو احضارکردو برای چندین بار به وی تذکرداد که بشما بهتر است در ظرف ۱۲ ماه اینده خود را برای خروج از افغانستان اماده کنید»• ددې غوښتني پرمهال روسانو داموضوع طرح کړله ،چې له افغانستانه به خپل قوتونه په دوو پړاوونوکي راباسي ددې خبري سره ډاکترنجیب توافق ونه ود ، ولې هغه دنوموړو ځواکونودتلوسربېره ټینګار وکړ ،چې دافغانستان په جنوب کې دکندهارله سمي بایدترډېره روسي ځواکونه رادبانه دي نه سې ځکه دوئ ته دکندهار ستراتیژیك موقعیت دنوروولایاتوپه پرتله داهمیت وړاودروسانوپه نه جودیت کې ددې سمې

وګ جنګ افغان شوروي عامل پرو پاشي جهان کمونیزم ۱۷۳ مخ•
وګ درس هاي تلخ ۱۶۶ مخ دمیر صاحب کار وال اثر•

ساتنهکرانه وه ،خو روسانو داخبره څه ډول ،چي ددوئ غوښتنه وه ونه منله بلکې دومره يې وکړل ،چې ترنیمې ډېر لښکر تروتلووروسته يې له کندهاره خپلې پښې سپکي کړې دامهال زما (د کتاب لیکوال) عمر نږدې دیارلس کاله وزمایاددي ،چې هغه اوږد کاروان ،چې دبیرد یم زرېپوښونو، غټواو وړو زریدار ټانګونو، اتـه ټېره محاربوي زري پوښونواوپه ختیځ المان کې جوړ کامازوموټرانوڅخه متشکل و ووت .

دسهارلس بجې وې دکندهاردنوي ښار پر چوك دشهيدعبدالرحمن شاه اغاه دکوټې ترڅنګ مور ښکيان[9] ورته په تماشاولاړوو او له خوشحاليه پورته غورځېدلودوه دري سپین ږیري ،چي اوس مې نومونه یادته نه راځي هم دلته ولاړ وه اوترسترګویې دخوښي اوښكې تویېدلې وروستۍ ټانك یې یو اته ټېره زرېپوښ پرسريې یوځوان روسۍ ،چي په تندي کې يې شين خال،پرسريې دظابط خولۍ اوپه لاس کې يې کيوبايي کلاشينکوف و، ناست و. دپښتون باغ پرسمه ،چي اوس ډېرتعميرات پر جوړاودکندهاردلوئ محبس په وړاندي سویل ختیځ پلوکې مو قعیت لري.یوټانك مجاهدینوترې نه وویشت ،د

[9] : دپښتو ژبي هغه توری چي په سر کي يې ((ښون)) کارول سوئ . وګ : دنوراحمد قران مل اثر ((ښکئ)) پښښور چاپ کال ۱۳۸۴ لمريز.

روسانو همدا کتار[10] په همدې ورځ څو ګړیه بیرته معطل سو زماپلار، چي ددې صحنې یوشاهد دی وې ویل ،چي ((اوس خودوتلوپرحال دي پري یې بېدی))له افغانستانه دوتلوڅخه وروسته دحیرتان له پله څه تېرېدونکي وروستی روسي پوځي او د څلویښتم لښکرقومندان بوریس ګروموف وايي (( ... له دې امله دارامۍ احساس کوم ،چي هر څه پای ته ورسېدل،... دټولوهغوسرتېرواوافسرانومجسمې جوړول پکاردي ،چي ددغه دوزخ لمبې یې وزغملې)) دایي هم زیاته کړه ،چي ((له مانه پس په افغانستان کي دڅلوېښتم لښکرهیڅ پوځي نه دی پاتي سوی)) •

## دشوروي یرغل پایله

شوروي اتحاددلښکروتروتلووروسته نه یوازي دا ،چي افغانستان دخپلواکۍ پرلورګام اوچت کړاودمیوند ،حماسه یې بیاراژوندکړه ،بیایې دامیرامان الله اودهغه دسپېڅلومجاهدینوولوله تازه کړه ولي داځل دشوروي اتحادپه وړاندي ددې معرکي پیاوړي اتلان داسي کړنوته مجبورسول ،چي نړیوال ویاړاوافتخار ور داغداره

---

[10] قطار

وګ (( سرې لښکري په افغانستان کي )) ۵۰۱ مخ •

اوپه خپل منځي شخړويې اخته کړل ، خوپه مثبت اړخ کې دشهید حاجي محمود ،شهیداسدالله((فضل محمد)) ،شهیدغفاري،شهید ګوډغاړي،لالاملنګ،شهید ذبیح الله ، شهید نصرتیار ، شهید امیر موسی کلیم ، کفایت الله (( اسلام الدین )) ، شهید زاهد ابراهیمي ، شهید ملا مدد شهیدي ناهیدي ، شهیدي نوربي بي، مجاهدي پیغلې ګلالۍ ،مجاهدي شیرینې، شهیدي جمیلې ، او ...... دوینو توییدو دنړۍ ددووسره ترلوبر اعظمونواسیااواروپاپه جغرافیوي قلمروونوکي په زغرده بدلونونه راوړلاونوي هیوادونه یې په نوي خپلواکۍ دنړۍ په قاره کي را منځته سول :

- تاجکستان ، ازبکستان ، ترکمنستان ، مغلستان ، قزاقستان ، بلغاریا ، چکسلواکیا ، یوګوسلاویا ،هنګري ، پولنډ ، أکراین ، ګرجستان ، او ........ هیوادونه خپلواك سول .
- المان شرق خپلواك اودبرلین دیوال ونړېد .
- هنداودهغه ګاونډهیوادونه دشوروي اتحاددممکنه نیواك څخه بچ سول .
- ایران او پاکستان دارامي ساه واخیسته.

- پــــــــه اقتصـــــــــادي ډګرکـــــــــي دنړیوالوپانګوالواوکمونیستي سیستمونو انډول لـه منځـه ولاړاوازادبازارته په پراخه پیمانه لاره هواره سوه .
- د امریکـې متحـده ایالتونـه دنـړۍ یکـه تـاز قدرت وګرځېد .
- دشــــوروي اتحادملاماتوونکي اقتصـــادي مصـرف ،چـي دروسـیې لـه غـاړي ولـه غـاړي واووښـت اوداهیـواد ددې جوګـه سـو ،چـي خپـل اقتصـادي اسـتخراج اوتولیـــداو دهغـــه مصـــرف یـــوازي دروســـیې هیـــواد پرچاپیرراوګرځوي
- مخکنــي شــوروي جمهوریتونــه ســره تــردې ،چیخپلــواك ســول دفقرغربــت اومســکنت پــر لورورمــات اوهغــه بــرم ،چــي مخکــي یــې یوپیــاوړی ځــواك ترشــاولاړو ځیني سلب سو .

## بیا هم ویر جن افغانستان

دشـــوروي اتحاددځواکونوتروتلووروســـته ســـره لـــه دې ،چـي سـاده لوحـه افغـان ولـس ډېـره خوشـحالي څرګندولـه خـو پـه کابـل کـي دموجـوده رژیـم پاتـه والـي ډېرداسـي څـه پـه وړانـدي لـرل ،چـي بیلـه جګـړې یـې بلـه لاره نـه درلـوده ملـي روغـي نـوري منـدي تـرړي دا سـي څـه لـه ځانـه سـره نـه لـرل ،چیـدموجوده رژیـم لپـاره سـل پـه سلوکیبقاتضـمین کـړي یـوه

ستونزه يې دملت په وړاندي دهغوواکمنووه ،چيدشوروي اتحادپه دوره کي يې ډېري اشتباه وي اوتيروتني کړي وې په بل اړخ کي دا وخت افغاستان داسلحوګودام ګرځېدلى و. دنړۍ داسلحودکارخانوداسي جوړاسلحه نه وه ،چي په افغانستان کي دي نه وي موجوده ياپه بله معنې داسيايي هيوادو په وروسته پاته هيوادونوكي له عراق پرته افغا نستان هغه هيوادو ،چي دهوايي ځواك په ملتيايې ترهرهيواد په ځانګړي ډول ترپاكستان، ايران،تركمنستان،تاجكستان،ازبكستان،عربي متحده اماراتو،سعودي عربستان او ... زياتي وسلې لرلې.

دشوروي اتحاد دلښكرتروتو وروسته دواكمنرژيم په لاس كي ددې ګودام دساتني شومه پاته نه سوه.

دمجاهدينوداخووې ،چي وې بلكي دمنظم كمونيستيرژيم دواكمنواونظامي كړيوترواك لاندي ددې ګودام ساتنه نورتروس تېره سوه اوهرڅه په بې مسئوليته توګه دعامه ولس لاس ته ولوېدل حتيدګاونډيو هيوادونوپه تور بازار كي يې تودبازار پيدا كړ. دې چور دروسانو تر وتلو وروسته په لمړي ځل دجلال اباد دغتې ليوا ،چي له روسانو څخه دنجيب حكومت په ميراث ورپاته سوه دچور لړۍ را شروع ،چي وروسته يې پړه

خلقيـــانوپر پرچميـــانو او پرچميـــانو پــر خلقـــي افســـرانو ور غورځول.

## جمعيت ته دائتلافي حکومت وړانديز

د ١٣٦٢ لمريـز کـال پـه لـړ کـي دروسـانو او مسـعود تـرمنځ د ډزبنـدی تـړون وسـو. [11] بيـا وروسـته دغربـي راډيـو ګـانو دهغـه دتشـهير پـه مـو خـه مسـعود دشـهرت پـه يـوه پـراخ موقـف کـي قـرار پيـدا کـړ همـدا و،چـي وروسـته دروسـي سـفير (ورانسـوف) پـه مرسـته ددکتـور نجيـب لـه حکومـت سـره دهغـه اړيکـي پيـاوړي سـوي دروسـانو تـر وتلـو وروسـته نجيـب وپتيلـه ،چـي پـه افغانسـتان دځـان دحاکميـت پـه موخـه داپـو زيسـيون ديـوې داسـي ډلـي اړيکـه ولـري ،چـي ددوئ ائتلاف نورهم دوامداره کړي

همـدا وچـي ډاکترنجيـب الله عبدالحميـد محتـاط پنجشـير تـه لـه مسعودسـره دملاقـات پـه موخـه ولېـږه لـه نومـوړي سـره دتمـاس او خـو ځلـي اړيکوپـه لـړ کـي نجيـب وجمعيـت (شـوراى نظار)تـه دملـي دفـاع،کورنيواو دبانـدنيوچارو دري واړه وزارتونـودورکړي وړانـديزوکړولي مسـعود دا ونـه منـل هماغـه و،چـي روسـانوله خپلـه اړخـه

[11] وګ ((سـرې لښـکري پـه افغانسـتان کـي)) دجنـرال بـوريس ګروموف اثر .

مسعود ته دجمهوري ریاست وړاندیزوکړ،چې داکړنه د ډاکټر نجیب له خوارد کړای سوه له همدې ځایه وو،چې دنجیب په وړاندې دشورای نظار،جنرال دوستم اوکارملي پرچمیانو ائتلاف راپیل سو .

## دخواجه غار پېښه

دافغانستان په اوسني سیاست کې به ډېرلږکسان وي ،چې داحمد شاه مسعودله نامه سره به نااشناوي خوددې سره ــ سره ،چېډېرخلګ هغه پېژني همداسې دده په اړوندنااندېولـه نظرونه موجوددي ځیني یې دافغان جهادزمری اوځیني یې ((له روسانوسره داوربند په کولو)) ولس ته دیومجرم کس په مفهوم پېژني دنومـوړي دژوندانه اودهغه پرمړیني که دغبږوکېداي سي ،چې موضوع به وشخصي اړخونوته ولاړه سي ،خودلته مووږ دهغه پرستراتېژي غورکول غواړو،چې نوموړ ي څه غوښتل ،چې څه بايد وسي ،چيري وسي اوپایله یې بایدڅه سي ؟؟؟

هغه غوښتل جګړه باید دنوموړي له سمي لیري په پښتنونشینوسموکي وسي خوپه هرصورت دنوموړي په اړوندځارنوال منګل خان کاکړوایي:((نوموړي دثورانقلاب څخه مخکې کومه داسې سابقه په جمعیت کې نه درلوده ،چې هغه دې یومطرح څوك وي حتی تردې نوموړئ

زموږ په ګوند کي اصلاً وونه ،خووروسته دجهاد پرمهال هغه داسي کړني وکړې ،چي داسلامي جمعیت سرپه لوړسي»

کله ،چي نوموړی بیا دخه مودي لپاره فلسطین ته داپارتیزاني«چریکي»جګړې دزده کړي لپاره ولاړ تر راستنېدو وروسته په افغانستان کي دثورکودتا څخه دمجاهدینو په صف کي ودریداوبیالوی څوك ځیني جوړسو.هغه دمقاومت په لمړیوورځو کي داسي کړني وکړې ،چي دغربي اژانسونو مخه یې دځان پرلوري وروا ړوله اوهغه یې په شېرپنجشېر ونوماوه دنوموړي حوصله،استقامت او پرېکړو هغه ددې جوګه کړ ،چي دځینوسپین ږیرو جهادي مشرانو په پرتله ښه وځلېږي.

هغه پخپلوکړنوکي داسي حالت ته ورسېد ،چي داسلامي جمعیت په ګوند کي یې دشورانظار په نوم بله مستقله څانګه جوړه کړه نوموړي په خپلوکړنوکي خودمختارو،حتي تردې ،چي وروسته ددې ګوندمشرښاغلي برهان الدین رباني هم اړ و،چي خپلي ګوندي پرېکړي داخوانیت پرمحورنه ،بلکي په دې ګوندکي دمسعودپه رایه وسي.

کله ،چي دمسعودپه مشرۍ دنظارشورارامنځته سوله نوموړې ددې لامل ،چي په سمه کي دنفوذپه خپلولوسره دسمي لوی اوواړه قومندانان داکه دجمعیت

اویانوروجهادي ډلووي اړه لري په مستقیم یاغیرمستقیم ډول دخپل ځان پرلوررامات کړي اودې ته یې ودرول ،چې دده مشرتابه ومني اوپه سمه کې نفوذولري خوداسې نه کېدل دجمعیت قومندانانوځکه رغ نه ورته کاوه ،چې ددوئ دګوند یولوړپوړئ څوك و ،عکساً دحکمتیاردحزب اسلامي قومندانان خپل ګوند ((حزب اسلامي))داصولوپربنسټ نه غوښتل ،چې دانجنیرحکمتیارملاتړپرېږي دي هغوئ کوښښ کاوه ،چې په هرشکل وي دخپل ګوندله موقف څخه دفاع وکړي .

همدا لامل و ،چیتر۱۳۶۸المریز پوري دشمال په سمه کې دحزب اسلامي څوتنه پیاوړي قومندنان په یوه اوبل ناه له منځه ولاړل ،چې نژدې ټول پرمسعود تاوان وه داوخت داګوند په افغانستانکي په سختوحالاتو کې را ګیرو او یودسالنك دسیمي پیاوړی قومندان صوفي پاینده محمد یې له احمد شا مسعود سره بندي و .حزب اسلامي دجګړې دوې مخي مخ ته پرتې وې .

1. دنجیب دولت په وړاندي .
2. دشورانظارپه وړاندي .

ښاغلي مسعود تصمیم ونیوی ،چې دیوه متحدکمونیکېشن لپاره هغه پالیسي تطبیق کړي کوم ،چې مخکي موخبره وکړه هغه دسمي ټولوقومندانانو ته

بلنه ورکړه ،چې د۱۳۶۸ کال دجنګاښ دمیاشتې پر۱۳ نېټه دشورانظارپه مرکزکې سره راغونډ سي ځودیوې متحدې قومندې په اړوند دافغانستان دشمال لپاره مشترک تصمیم ونیسي ،چې په دې کې پرجمعیت سربېره دحزب اسلامي دشمالي صفحاتوعمومي قومندان انجنیرسیدجمال ولیدته هم بلنه ورکړه سوې وه ،خوپه داوخت کې داحمدشاه مسعودپه زندان کې په سالنګونو کې دحزب اسلامي دامیر((صوفي پاینده))توقیف سیدجمالولیدهم پرهغه شکمن کړئ و،چې نګانه ،دنومورې دزندان په کړیوکي دئ هم ورداخل سي ځکه یې له ورتګه انکاروکړدې سره په نومورې مرکزکې دشمال په سمه کې دجمعیت دلوړپوړوقو مندانانودغونډې تراتمام له یادې نېټې څخه پنځه ورځې وروسته دتخاردخواجه غارپه سمه کې دحزب اسلامي له مرکزڅخه تېرېدل دانجنیر مسعودپه شمول دسیدجمال ولیدلخوادصوفي پاینده دراتبدیلی په موخه ونیول سول اوبیابندیان سول .

دحزب اسلامي امیرحکمتیاردې کارپه کړنه سره تاسف وښوداوسیدجمال ولیدته یې دمخابرې له لارې قاطع امروکړ ،چې بندیان ایله کړي دنوموړوتراایله کېدو وروسته دحرکت څخه څوکیلومتره لیرې دجمعیت اسلامي یادقومندانان تربرید لاندې ونیول سول دځلورو اړخو پر

نوموړوبانـــدي ددوهاتیـــاملي توپونواوتوغندیوبریدداســـي اساســي وموښـــت ،چـــي بیلـــه احمدشـــاه مسـعوده څخـه نورپاتـه څلـــوردیرش تنـــه قومنـــدانان لـــه منځـــه ولاړل دهماغـــه ګونددلوړو پوړو غړوله جملې

1. اسلام الدین حامد داشکمش ولسوالۍ ولسوال .
2. سیدحسن دشورای نظاردنظامي شورامرستیال.
3. عبدالودودپـــه تخاروﻻیـــت کـــي دجمعیـــت عمـــومي قومندان
4. معلم طارق دبنګي په سیمه کي دجمعیت قومندان .
5. عزت الله دسیادولسوالۍ عمومي قومندان.

پـــردي بنســـټ ،چـــي داپیښـــه دحـــزب اســـلامي ترحاکمیـــت لانـــدي پـــه خواجـــه غـــارکي ترســـره ســـوه. دحـــزب اســـلامي اوجمعیـــت تـــرمنځ هغـــه ډغرازموینـــه نـــوره رابرســـېره کـــړه ،چـــي مخکـــي دکندهارپـــه ولایـــت کـــي دجمعیـــت اســـلامي عمـــومي امیرملانقیـــب الله اخونـــداود حـــزب اســـلامي دقومنـــدان حـــاجي اســـدالله (( محمـــد شـــفیق))ترمنځ دوه دري ځلـــي رامنځتـــه ســـوي وه انجنیرمســـعوددډي کړنـــي پـــه ترســـره کېداســـره ټولـــه پـــړه دحـــزب اســـلامي دشـــمال پراميروړواچولـــه اودایې یوناوړه کاروباله .

دحـــزب اســـلامي دشـــمالي صـــفحاتو امیـــر ســـیدجمال ولیـــد داد مســـعود لـــه اړخـــه یـــوه جـــوړ کـــړي دسیســـه وبللـــه چـــي

په جمعيت او شورا نظار کي تر ځان لوړ کسان نه سي زغملای ځکه نو خپل ملا تړي په ډېر هنر له منځه يووړل .
ځوورځي وروسته دجمعيت اسلامي په ګوندپوري اړوندد ((پيام مجاهد))اوحزب اسلامي په اخبار((شهادت ))کي داپېښه يوه تېر وتنه وبلل سوه دواړوګوندونود يوې اعلاميې په خپرولوداکاردهغه چاوباله ،چي نه غواړي افغان مجاهدين يوسي ځکه يې نونه پړه پرحزب ولوېدله اونه هم پرجمعيت .
دااعلاميه زما((ليكوال)) په يادده ،چي دکوټې په ښاركي دحزب اسلامي لخوادتنظيم طلبه ديني ومحصلين افغانستان ((دحزب اسلامي دځوانانوسازمان))کي دجمعيې شپې په فرهنګي غونډه کي دهمدې غونډې دوياند قيام الدين ((محمد يعقوب))لخوااورول سوه.
وروسته ددعاپه ويلونوموړوګوندونودوحدت په هيله دخدای دربارته دعاوسوه. دخواجه غارپېښي دافغانستان په شمال کي نه بلکي دافغانستان څخه ترسرحدباندي دپېښوريه كمپونوكي دمهاجروپرروحياتو بېل بېل اثرونه وغورځول ځوورځي وروسته داحمدشاه مسعوددنظارشوراغړو دتخارولايت په خواجه غاركي دحزب اسلامي پرمركزي قرارګاه نابېره بريدوكړدابريد دومره چټك و،چي سيدجمال وليدسره

تـردي ،چـي دپېښـي احتمـال يـې ډېراحساسـاوه بيـاهم پېښـې تېنګـي نـه کـړې اوګـرى مـرى ونيـول سووروسـته نومـوړى مرکزدجمعيــــت يوقرارګــــاه وګرځيدلــــه اوســــيدجمال وليــددانجنير مســعود پــه توقيــف کــي دصــوفي پاينــده غونــــدي کښــــېووت داستادســــياف اومولــــوي صــــاحب محمـديونس خـالص دګونـدونومنځګړي تـوب تـردې پېښـې وروسـته دسـيدجمال وليـد پـه را ايلـه کېـدوکي ځکـه کومـه پايلــه ورنــه کــړه ســيدجمال وليــددجمعيت اســيرنه بلکــي دشورانظاريامسعودبندي و.

ترڅلورومياشتووروســــــــته احمدشامســــــــعود راډيوګانوژورناليســــتان دخپلــــي قومنــــدې مرکزتــــه وروغوښــتل اوورتــه ويــې ويــل ،چي((موږدهغــه ټــول هغــه حقــوق ورپرځــاى کړيــدي کــوم ،چــي يوبنــدي يــې لــه ســــاتندويانوغواړي دهغــــه لپــــاره منظمــــه غــــذا ،قران کريم،اوټول هغـه څـه ،چـي دى ضـرورت ورتـه لـري ورتـه تهيـه دي دا ،چــي نومــوړي پرخپــل جــرم اعتــراف کړيدى،ځکــه نومـــــــــــــــــــــوږاړيودخپلــــــــــــــــــــــوتير څلوردېرشوتنوشهيدانوســــوقومندانانوغچ واخلو:اســـــلامي محکمې هغه ته دقصاص حق اوروله.

مــوږ ،متاســف يــو،چي يــو ه تکــړه اودســنګراتل اوســاتندوئ مجاهدســيدجمال وليدتــه دمــرګ ســزاورکوو)).

سره لـه دي ،چې مسعود بیاوروسته دهغـه داعتـراف هیـځ شواهدوړاندي نه کړای سوای .

ددې کړنې وروسته یې سید جمال پـه ډېرجالـب چلنددار پرسولۍ راوځـړاوه پـه شـمال خصوصاً په تخـارکې حـزب اسـلامي درنـه ضـربه احسـاس کـړه دنومـوړي معمـا اصـلي دلیـل ترپا یـه څرګندنـه سـو ،چې ایـا نومـوړي قومنـدانان سـید جمـال ولیـدوژلي وه اوکـه بـل چـاخوپر سـید جمـال ولیـد وو،چې پېښـه دنومـوړي مرکزتـه څېرمـه سـرته رسېدلې وه .

سـره لـه دې ،چې ربـاني اوحکمتیـاردادنورولاس بالـه دنوموړوقومنـدانانو پـه مړینـه کـه جمعیـت خوارسـو همـدا ډول حـزب اسـلامي هـم خپـل یوپیـاوړی څـوك لـه لاسـه ورکړمسعودپه ښـکاره پـه دې کـارکې پخپلوقومندانانوډېرخفـه و،خودسـید دجمـال پرمړینـې سـربېره دشـورانظاراوحزب اسـلامي دیـادوقو مندانانوپـه نیستي کېدووانجنیرمسعودته میدان پراخ سو.

## عبوري حکومت

دروسانوتروتلویوکال وروسته د١٣٦٨المریز کال
دجوزا پر ٢٩نیټهپه پېښوروکې جهادي ګوندونه په دې
سلاسول ،چې نوردګوندي حاکمیت پرطرزنه بلکې دیوه
متحدصف په موخه یونوی اسلامي حکومت جوړاوپه دې
سره وکولاي سي ،چې له یوه اړخه دنجیب د حکومت ځای
ناستی اوپه بل اړخ کې دملګروملتونوپه سازمان دموجوده
حکومت چوکۍ واخلي ،ولي په دې اړخ کې په کابل کې
دډاکټرنجیب حکومت حاکم اودامهال دجلال ابادیوه
پیاوړې،ولي ناکامه جګړه ترسره سوې وه مجاهدینودخپل
دولت دتشکیل په موخه پخپل منځ کې په دې سلاسول
،چې دجهادي رهبرانو په موجودیت کې دهغوئ
دګوندونواجرائیه شوراګانوغړي دحکومت په کابینه کې
راسي.
داستادعبدالرب رسول سیاف دګوند په
استازیتوب ددې ګوند لمړئ مرستیال انجنیراحمدشاه
احمدزئ دحکومت مشرسو.
نوموړي دځان لپاره دمتفرقه نفوذلرونکو جهادي
ګوندونوڅخه دوه تنه مرستیالان تعین اودهغوی سره په ګډ
توافق یې ٢١ کسیزه کابینه جوړه کړه.

له مرستیالانوڅخه یې لمړی مرستیال له نجات ملي څخه ډاکټر ذبیح الله مجددي دوهم مرستیال یې له حرکت انقلاب اسلامي محمدي ګوند څخه مولوي احمدشا فضلي وټاکل دنومړي کابیني له ۲۱ کسیزه وزیرانو څخه

- دحزب اسلامي((خالص)) په استازي توب حاجي دین محمد دملي دفاع وزیر
- دجمعیت اسلامي له ګونده څخه سیدنورالله عماد دکورنیو چارو وزیر
- دحزب اسلامي څخه قاضي نجي الله دباندنیو چارودوزیر
- دمحاذملي څخه ډاکټر فاروق اعظم دبیا ودانولو چارو وزیر
- دحرکت انقلاب اسلامي څخه محمد اسمعیل صدیقي دمالیې وزیرغوره سول

نومړي حکومت په ۸۷ مادوکي دخپل دې عبوري اداري اساسي قانون توشیح کړولي ترلږي مودې وروسته په دې حکومت کي دځینو ملحوظاتوپربنسټ ګډوډي رامنځته اونومړی حکومت متلاشي اعلان سوددې حکومت دبیاراپورته کولولپاره پردې سلاوسوه ،چې داخل پخپله جهادي رهبران په کابینه کي دوزیرانو په

توګــــه مطـــــرح ســــي داحکومــــت بــــه پــــه موقــــت ډول ترشپږومیاشتووروســـته منحـل اعلانیـــږي اوپـه پایلـه کـي بـه یـــي منتخـــب حکومـــت جـــوړیږي مـــوقتي حکومـــت بـــه پـــه شپږومیاشـــتو کـــي دهیواددننـــه هغوســـموته انتقـــالیږي کـــومي ،چي دمجاهدینو په ولکه کي دي په دې حکومت کي

- حضرت صبغت الله مجددي دحکومت ریس
- استاد سیاف لمړي وزیر
- مولوي محمدنبي محمدي دملي دفاع وزیر
- مولوي محمدیونس خالص دکورنیو چارو وزیر
- انجنیرحکمتیار ددبادنیو چارووزیر
- استادبرهان الدین رباني دفوائدعامې وزیر
- پیر سید احمد ګیلاني قاضي القضات

د ۶میاشـــتو پـــه لړکـــي دسعودي او امـــاراتو پرتـــه یـــوه هیـــــــوادهم دې تـــــــه زړه ښـــــــه نـــــــه کړ،چـــــــي دمجاهــــدینومهاجرحکومت دي پــــه رســــمیت وپیژنــــي د ۶میاشـــتوترپوره کېـدو وروســـته دحـزب اســـلامي حکمتیارپرتـه ټـول جهـادي ګوندونـه پـه دې سلاسـول همـداحکومت سـم او ترڅـو مکملـه زمینـه برابـره نـه سي انتخابـات نـاممکن دي ولـي حـزب اسـلامي پـردې ټینګارکـاوه ،چـي نـوي پـه سـلوکي خـاوره دمجاهـدینو پـه واک کـي ده انتخابـات ممکـن اوکومـه سـتونزه

نه ترسترګو کېږي بايد انتخابات وسي کله، چېپرمخکنۍ طرحه موافقه ونه سوه.

هماغه و، چې حکمتيار له پېښوره دلو ګراو بيا وروسته پکتيا ته دسپيني شګي پر لوروخوځيداوله بې بې سيرا ډيوسره يې دشپږومياشتو په پوره کېدو سره له موقتي حکومت څخه دوتلو اعلان وکړهغه وويل «کسانيکه ميخواهد وحدت ملي مارا متلاشي بسازد انتخابات رابتعويق مي اندازد».

دې کړنې دحزب اسلامي اونوروجهادي کړيوترمنځ اوبه خړې کړې اواختلافاتولړۍ نوره هم پسې وغځېده شپږمياشتي وروسته انجنيرفيض محمد«منګل» اومولوي جلال الدين «حقاني» په ګډه پرخوست بريدوکړاونومړي ولسوالي يې دډاکټر نجيب دحکومت له لاسه وکښله.

## دنجيب له لوري دمذاکرووړانديز

نجيب پخپل دولت کې ديوې تودې اوخطرناکې پېښې درامنځته کېدوانتظارکاوه. هغه ددې ممکنه پېښې دمخنيوي په خاطرله خپل لوري دسعودي عربستان اوکويت هيوادونولهحکومتونو وغوښتل، چې دافغانستان دمسئلې دحل په موردله مجاهدينوسره

وړغېږي، ولي دې خبري لاعملاً صورت نه ونیولی ،چې جنرال شهنواز تني په پاځون لاس پوري کړ .

## دجلال اباد لویه جګړه

دشوروي اتحاد دلښکروترووتلوو اومجاهدینو دحکومت ترجوړښت وروسته مجاهدین د۱۳۶۸کال په ژمي کي په دې تصمیم سول ،چې دهیواد داخل ته دخپل دحکومت دانتقال په موخه یودا سي ستراتېژیکه سمه غوره کړي ،چې دوئ په تشکیلاتي او دفاعي حالت پکښې خوندي وي دهمدې خبري دپلي کولو لپاره دجلال اباد ولایت غوره سو.

په دې عبوري حکومت کي ټول داخل جهادي ګوندونو په ګډه سره دیوې لویې جګړې په تصمیم سول سره له دې ،چې دمجاهدینو له اړخه جبهې دموقعیت په لحاظ پر ځوبرخو او استقامتونو ویشلي سوې وې ولي بیا په عموم کي ددې جګړې رهبري دځینو روایاتو پر اساس دافغانستان داوسني ملي دفاع وزیر جنرال رحیم وردګ اودنجیب دحکومت له لوري دجګړې قومنده دهغه وخت دملي دفاع وزیرجنرال شهنوازتني له غاړي وه .

دجګړې وروستئ تیز واله تر داسي پړاوه ورسېدل،چي دنومړي ولایت مرکزصرف ځلورکیلومتره مربع مساحت دنجیب دحکومت په لاس کي و.په دې جګړه

کي دنجيب دحکومت سرتېرو ته دمورال ور کولو په موخه نجيب پخپله يوځلي په بېړني تلګ له نومورې ښاره څخه له نژدې کتنه وکړه ددې ترڅنګ دمجاهدينو دروحيې دپياوړي کېدو په خاطر هم حکمتيار څو ورځې دجګړې په ليکو کي پاته سو ولې دنومورې ولايت دمجاهدينو دترلاس لاندې سموکي هډو دنجيب حکومت لخوا څخه موډرنه او پرمخ تللي روسي وسلې **۲۵** فيره (سکاډ) توغندۍ واورېدې .

پـه دې سره دنومورې لايت مرکز بيا هم دکابل له حکومت سره پاته سو. مجاهدين عقيب نشينۍ ته اړ او حکمتيار په کښي زخمي سو .

## دتېږې برید

محمداصف شوردکندهاردارغنداب دلویې جګړې وروسته وکولای سول ،چې په کندهارکې دحزب اسلامي دعمومي قو مندانۍ ((سعدیه جبهې)) دفرهنګي (( یس کمیتې)) له لارې په کوټه کې دحزب اسلامي دجنوب لویدیځ زون له ریس مولوي جانباز((سرفراز)) سره دډګروال خان محمد ((نورزي)) په مرسته تماس قایم کړي دسرفراز په مماس دنومورې ګوندله مشرسره دا خبره شریکه سوه په دې وخت کې دحزب اسلامي دنظامي کمیسیون ریس ډاکټرمحمد حنیف خپله کلنۍ رخصتي له حزبه اخیستې اودخپل کوارغستان پرلورراستنېدی ،چې دنومورې ګوند درهبرۍ له لوري بیرته دې ته وګمارل سو ،

دنومورو اړیکوپه پیوندکې تررخصتۍتیرسې نومورې وکولای سول ،چې له شورسره اړیکه ټینګه اوله همدې ځایه وو ،چې دخلق ګوندهغه مخکې پلان ،چې نومورو څوکاله مخکې پلان کړې وزمینه ورته برابره سي.

ډګروال خان محمد خان ،چې په دې لوبه کې یې ترډېره رول درلودلۍ مالیکوال ته دیوې پوښتني په غبرګون کې وویل :ــ داصف شورهدف یوسوچه اسلامي حکومت و،ولي دانجنیرصاحب هدف ددې کارترڅنګ دکابل رژیم د لوړپوړو چارکویو په بل سره وهل و.

په دې کارکي هغه مخکي هم مهارت درلود، حتي
تردې، چي کله، چي وروسته بيادرشيددوستم په
مشرتابه«جنبش ملي» جوړ سوهم
دهغه«حکمتيار»يوتېولګيوال جنرال عبدالمجيدروزي
ددوستم دمرستيال په توګه تعين کړل سوی و حال دا، چي
په نوموړی دوستم له حکمتيارسره دهغه وخت په اړيکو
ناخبره و، دپورته خبرو په راګرځېدواصلاددې کړني
لوبغاړی او پلانوونکی جنرال شهنواز تنهي نه، بلکه
ارکانحرب محمد اصف شور و.

دوخت ځيني ليکوالان او سياسيون په دې باور
وه، چي داکاردانجنيرحکمتيار نه بلکي دپښتنو په وړاندي
دجمعيت يوه دسيسه وه په دې اړه شهرت ننګيال، چي
اوس دانګلستان تبعه دی داسي وايي «رباني ددغه
ناکامي کوتاه دمسئوليت دمنلونه ډډه وکړه که څه هم له
جنرال تنهي سره په چورلکه کي درباني رابط، چي په دغه
کودتا کي يې بنستيزنقش درلوداستادجيلاني يفتلي
يوځاي راغلی و» • ولي ډېرسلنه خلک په دې باوردي، چي
دجنرال تنهي کودتا پخپله دډاکټرنجيب الله داشتباهاتو
زېږنده ده، هغه په دې معنی، چي دببرك ډلي
پرچميانو«فريدمزدك، نجم الدين کاوياني، جنرال مومن،

---

•ولې «دمرلې پر وزرو» دشهرت ننګيال اثر ۲۴۵ مخ

جنـرال بابـا جـان ،جنـرال نبـي عظيمـي او .... ›› دډاکټرنجيـب الله دا ســي چـاپيرکړئ وو ،چــي بيلــه دوئ څخــه دنوروســره تمـاس قائمولوفرصـت ياخونـه ورتـه برابرېـده اوياکـه برابرېـده نومــورو پــه ډېرمهــارت نجيــب الله پــه اغفــال کــي ســاته، همدغـه کړنـه وه ،چـي تنهي دوئ دي تـه اړسـول ،چـي کودتـا تـه لاره هــواره کــړي هغــه پــه دي خبــر نــه و،چــي دفرمــان ترصدوروروســته تــر هغــه رالانــدي دوه بســته کښــته ډاکټــر نجيب فر مان سر چپه انګېزه ورکوله.

يوځـل بيـا شـهرت ننګيـال ‹‹ جنـرال تنهي تـه داسـي را پورنــه ورکــول کېــدل،چي نجيــب پــه ده او دده پــه خلقــي افسرانوپســي راخيســتي ده ،اوډاکټرنجيــب تــه داســي راپورونــه ورکــول کېــدل ،چــي جنــرال تنهــي لــه انجنيرحکمتيارســره لاس يوکړيــدی ›› • حتــي تــردي ،چــي داســي موضــوعات هــم وه ،چــي دډاکټرنجيــب الله تــه دهغــه داســتخباراتي وزيــرغلام فــاروق ‹‹يعقــوبي›› لخــوا ،چي کومـه اطـلاع ژرروروسـېږي نجيـب تـه همـدااطلاع مياشـت مياشـت وروسـته رسـېدله.په دي کودتـا کـي دلاس لرلوپـه اړونـدحزب اســلامي مشرښــاغلي حکمتيــاردا خبــره نــه ردوي بلکــي دااقـدام دحـزب اســلامي پـرلاس يـو ه برلاســي کړنـه بـولي ، نومورئ وايي :

• وګ‍ ‹‹ دمرګ پر وزرو ›› ۲۴۴ مخ

«جنــرال اصــف شــوردرنامه هــای اخيرخــودبمن اطــلاع دادکــه:درقرارگاه وزارت دفــاع وحــول وهــوش وزيــر دفــاع کارپيشــرفت زيــادکرده قرارگــاه و وزارت دفــاع کــاملا درکنتــرول ماست،مگرشخصــي وزيــررادر جريــان نگذاشــته ايم،دروقــت صــدورقومنده اقــدام ســوق واداره نيــرو هــا دردســـت خواهـــدبودانهادرنظر ميداشـــتندکه اقـــدام شــانرادرزماني اغازنمايندکــه تشــنج ميــان نجيــب وتنــی بــه درگيــري مســتقيم تبــديل شــود ،مگراين تصــميم موجــب شــدکه اقــدام بتعويــق بيفتــدوبرای نجيــب درمقابلــه بــااين خطرفرصــت امــادگي فــراهم گــر دد» •• ســره تــردي ،چــي دپــاخون دپيــل زمينــه مســاعده ســوه اويــاهم پرجنــرال تني دوئ بانــدي همــداکو دتــاه تحميــل ســوه خوراځئ پخپلــه يــې دډاکتــر نجيب الله او شهنواز تني له خولو واورو :

ـ بي بي سي : سوال ؟

ــــ نجيــب : پــه کالــه کــي زمادکــډي پښــې خــوړېږي پــرلاره حرکــت نــه ســې کولای،داراپورتــه اووايــي تــاتني راغوښــتی دی دپښــتنوکورته راغلــی دی زه ورتــه پورتــه کيــږم آشــك پخــوم اواشــك يــې ورپــوخ کــړ، زه او وطــن جارورســره

---

•وګ «پتهـي تـوطئې او بربنـډي خبـري» دانجنيرحکمتيـار۶۳ چـاپ سوي اثر۵۳ مخ

ناست یـواوخبري ورتـه کـوو،چي څـه کـوي پرکومـه لاره روان یې ؟!

اوملګریـه تنیـه !پرکومـه لاره روان یـې ؟ ! اول خـو پـه دې حادثـه کـې څـوك ژونـدی نـه پاتـه کیـږي بیـا تاوګتهلـه دا ،چي ودي ګتهله دڅوورځولپاره یې ساتلای سې ؟

بي بي سي : سوال ؟

ـــ تنهـی : داخـو صـحیح خبـره آشـك خـوده خلګوتـه ورکـاوه خـو ډېرکـو ښـښن یـې کـاوه ،چـي خلـك منحـرف کـړي خپـل ګونـدي مشـران اوجنـرالان یـې هـم منحریـف کـول نـوده پوځیـانوحتي دګوندمشـرانوته پیسـې ورکولې،تطمیـع کـول یـې ځانتـه یـې تسـلیمول ، ده پـه دې شـکل یعنـي دکـا ،جي،بي دخـاددمېتود پـه واسـطه سـره یـې غوښـتل افغانسـتان اداره کـړي پـه هیچابانـدیې اعتمادنـه کـاوه اوپـه هیچاباندي باورنه کاوه هرچاته په چل و.))

## دنجیب اوتنهي ترمنځ دستونزي پیل

ډاکټرنجیـب الله هغـه وخـت دده اوجنـرال تنهـي تـرمنځ دسـتونزو احسـاس وکړ،چـي ددوئ اوخلقیـانوترمنځ داخـتلاف تکـي اوج تـه رسـېدلی و،دسـاري پـه ډول دکنـدهاردپوهني پخـوانی ریـس اسـتادحیات الله((رفیقـي)) وایـي :ـــ (( زمایـاددي زه کابـل تـه یـوه سـمینار تـه تللـی وم هلتـه څـه بسـپنه دمعـارف وزارت لخـوا دکنـدهارمعارف تـه

ځانګړې سوې وه، څوځلي مو کوښښ وکړ، چې نوموړې مرسته کندهارته دالوتکې له لارې انتقال کړم.

په دې اړوندبه مې دصدارت له مقامه څخه دلېږدامر واخیست خودکابل په هوایي ډګرکې نوموړې امرهیڅ‌چانه مانه، بلکه ورځ مې دا خبره دپوهني له وزیر سره شریکه کړه په دې وخت کې دپوهني وزارت یوه خلقي مامور، چې مخکې زماڅه اشنای و، راته وویل: وه رفیقې! ستونزه څه ده؟ ما ورته وویل، چې دریاست جمهوري امر په هوایي ډګرکې نه منل کېږي!

هغه راته وویل: دا دومره کارنه دی په همدې ورځ یې په میدان هوایي کې یوخلقي صاحب منصب راوښود، چې سباته یې دموادو په پوره انتقال کې مرسته راسره وکړه ددې اختلافونواړوند دخلق دموکراتیک ګوندغړی اودخلقي اړخ فعال عبدالرشید ((آرین)) ددې موضوع دتائید په اړه ما دکتاب لیکوال ته دیوې مستقیمې ژوندۍ مرکې په لړکې وویل: ((دا پېښه له همدې ورځې تصادفي نه وه دقوس له میاشتې څخه دده او نجیب تر منځ تر ګټي روانه وه له همغوورځو څخه ددفاع وزارت اودهغه پرمخامخ دخادپنځم ریاست دملي دفاع وزارت په وړاندې جبهه نیولې وه دقوس له میاشتې څخه ترهمدې ګړیه ددا سي یوې پیښې انتظار کېدې))

داریـن ددې خبـري پـه تائیددهغـه وخـت دملـي دفـاع وزارت یـــوډګروال محمـــد حســـن خـــان ((پوپـــل)) وایـــي: ((ډاکترصـاحب اطـلاع ترلاسـه کړیـوه ،چـي خلقیـان یـوه کودتـا کـــوي ددې کـــاردمخنیوي پـــه خـــاطریې ددولـــت دامنیـــت وزیریعقـوبي تـه امرکړیـو،چي دجنـرال فیضـي پـه مشـرۍ یـوه اتـه کسـېزه خلقـي نظـامي ډلـه ونیسـي بیـایې توقیـف کـړي ،چـي یعقـوبي همـدا سـي وکـړل)) دنومـوړي کړنـي وړانـدي ډاکتـــر نجیـــب ســـره لـــه دي ،چـــي پرلـــه پســـې لـــه غلطـــو معلوماتوخبرېـــده بیـــایې هـــم کوښـــښ وکـــړ ،چـــي نومـــوړي ستونزي تـه دحـل مناسـبه لاره ولټـوي پـه دې اړونـد دروسـیې سـفارت لـه کارمنـد((جنرال محمـود احمـدیویچ ګـاریوف)) پـه مشـرۍ دروسـي سـفارت کارمندانوتـه دملـي دفـاع پـه وزارت کي دده په وړاندي دټانګونودموضع ګیرۍ خبر ورکړ.

دنومــوړي موضــوع دیوطرفــه کېــدو پــه اړونـد دده او ټنـي تـرمنځ روغـه وکـړي ولـي روسـانو پـه دې خبـره سـرونه ګـــراوه• دمـــو ضـــوع دحـــل پـــه موردوروســـته ترکـــي پلـــوه خلقیانودموضـــوع دحـــل پـــه مورددنومـــوړو تـــرمنځ دجـــوړي لـرۍ را پیـل کـړه هغـه پـه دې معنـي ،چـي کـه نجیـب مـو فـق

---

• خو ددشنهای سرخ لیکوال فقیرمحمد ودان بیادا خبره مني هغه وایي چي دکودتاه دپیل پرمهال هم ټنۍ له روسانو سره په تماس کي وو وك((یاد اثر)) ۵۴مخ

سي نودپاته سوو خلقیانو دژغوني لپاره به همدا صاحب منصبان اوخلقي غړي دهغوئ دخلاصون هڅه کوي اوله تنې برلاسي سي بیاخونودوئ رژیم خپل بولي ،چي همداسي وسول کله ،چي دتنې کودتا ناکامه سوه بیاهم را زمحمد پکتین، محمدا سلم وطنجار اوجنرال نظرمحمد دنومړي په کابینه کي مطرح کسان ول .

ددې منځګړیتوب په اړه تنې پلوه خلقئ میرصاحب کاروال وایي :یك هیئت ازجمع رفقاموجوداز قبیل پنجشیری، نیاز محمدمومند ،جنرال نظرمحمد واستاد ګلداد مؤظف ګردیدکه نجیب الله وسفیر شوري مقیم درکابل درین باره صحبت نمایدوموضیع ګیري اصلي رابماتوضع ګردد خواسته های اصولي ما قرار ذیل است :

بالای سیاست کدري تجدید نظرګرددروحیه اعتمادمتقابل تامین ګردد ،ازتکرار این ګونه توطیه هاوتحرکات جلوګیري شودکسانیکه دردفاع تني قرارګرفته اندمو ردتعقیب وتهدیدقرارنه ګیرد)) نجیب داکار زموږ دهیئت دغوښتني پربنسټ ترسره کړ او د۱۳۶۸ لمریز کال دجدي دمیاشتي پر ۴نېټه دسهار پر ۹ بجې دراکټ لوا تو قف سوي خلقیان یې بیرته را ایله کړل

کار وال وایي:(( کله ،چې مې نومورې کسان ولیدل ډېرمتاثرسوم ((رنگهای زرد که دستگای خاددرنتیجه لت وکوب شکنجه دادن برق وغیره که تمام بدن آنها زخم ـ زخم داغي کرده بوداین چنین صحنه نهایت متاثروعصباني وحتي حوصله تحمل دیگرباقي نمي ماند ،طرفداران وطنجاربنام انجنیر نظرمحمدورازمحمدپکتین به تني روان مي کندوبعداداکتر شاولي،کریم میثاق،شرعي جوزجاني وعبدالقدوس غوربندي به تني رفتنند ، ولي رفتن این عناصرکدام جاي نگرفت )) دې کارهم چنداني پایله ورنه کړه اوډاکټرنجیب الله بیاهم دیوه پا ځون په انتظارسونومورې دوخت لمړي وزیرسلطان علي کشتمندته دیوې پوښتني په غبر گون کي وویل:(( مصالحه بااو(( شهنواز تني)) نا ممکن است بگذاروی نخست به کدام اقدام دست بزند)) •ډگروال محمدحسن خان وایي:تني دوئ په پلان کي لرل ،چې دپرچم دډلي واك محدودکړي اودغیرپښتنونفوذبایدپه دولت کي په دومره اندازه نه وي ،چې دپښتنومشروعیت ترسوال لاندي راولي

.

---

• وګ (( یاداشتهاي سیاسي ....)) دسلطان علي کشتمند اثر ۱۰۰۴ مخ

دکودتـا لپـاره داوخـت لانـه بلکـي اتـه میاشـتي وروسـته اقـدام تعـین سـوي وو ولـي حـزب اسـلامي تنهـي دوئ دې کـار تـه پـرې نـه ښـوول بلکـي هغـوئ تـه یـې دځینـو معلوماتولـه رویـه مشـوره ورکولـه ،چـي دډاکتـر نجیـب حکومـت دمرکـزي کمیټـې دځینوغړولـه لاري بـه دحـزب اسـلامي امیرانجنیرحکمتیارتـه رسـېدل، پـه دې اړونـد ښـاغلي محمـد حسـن خـان بیـاوایي:((کو دتـا دامهـال نـه وه کېـدونکې ځکـه ،چـي وخـت یـې نـه و، ولـي دحـزب اسـلامي لخوا دوئ مجبورسول ،چي داکاربایدژروسي)).

دحـزب اسـلامي خلکـو پـه واروداخبـره تنهـي دوئ تـه څرګندولـه ،چـي امنیـت دولتـي لـه دې پلانـه خبـردی شـوني ده ،چـي ستاسـي د نظـامي اقـدام دپیـل تـر مخـه دنجیـب دوئ لـه لوري خنثي سئ.))

## دمخابرو ضرورت سته

ارکـانحرب محمداصـف شـوراوډګرجنرال شـهنوازتنهي دواړو دحـزب اسـلامي دمرکـزي کمیټـې داطلاعاتولـه څـانګي سـره تمـاس ونیـوی دتمـاس سـړی دحربـي ښـوونځی پـه وختونـو کـي دانجنیـر حکمتیار،محمداصـف شـوراوجنرال عبدالمجیـد روزي همـدوره خـان محمـد خـان تـه ددوئ لخوادنـده ورکولـه سـوېوه ،چـي فعالیـت ګړنـدی اوداطلاعاتوپـه ترتیـب اورسـدکي پـوره

ونډه ولري نیازمحمدمومند ،چې داوخت یې رسماً دتنې دوئ پلې ته ځان وراچولی و.

ددې پټواسرارو ناخبره و،ولې تنې دوئ ته یې دتوصیې په توګه ویل:((موږ بایددکودتا دپیل پر مهال داسې مخابروي وسایل ولرو ،چې یوازې دمحدودوپاڅون کوونکوترمنځ اړیکې بسته کړي ترڅوهغه پرچمیان ،چې ددولت په ټولو مخابروي زنګنالونوکې متمرکزدې تر غافله واوسې دملي دفاع وزارت ټول مخابروي وسایل داخت ټوله دهغوکار مل پلوه پرچمیانو په واک کې ول ،چې ځانونه یې په ښکاره دنجیب خواخوږي بلل.

له کابل څخه دجنرال فقیرمحمد په مرسته دمخابروي خواستې په مورداړوندکس له کابل څخه دبردیم زریپوش په مرسته دلغمان په چارباغ کې دحزب اسلامي حوزې ته اوله هغه ځایه څخه پېښوړته انتقال سواړیکې نیونکې دنیاز محمدمومندغوښتنه دحزب اسلامي داطلاعاتوڅانګې ته وسپارله اوترهغه وروسته دنوموړي حزب له خواداتودانو په تعداد ډېري وړې مخابرې،چې دلاسي را ډیو شکل یې درلودموږ ته را کول سوې. یقیناً ،چې دهغومخابرو سیستم ډېر پیاوړي اومحدودودنوموړو مخابرودویش په مورددهغوکسانولیست انجنیر حکمتیارته وړاندي سو.

مخابرې ورکول کېدې ،خوهغه پـه دې لـسـت کـي دمحمدظاهرسوله مـل پرنامـه نیوکـه وکـړه او ویـې ویـل : داسـړی دباورنـه دی سـاده لوحـه دی اورازتـرې افشـا کېـږي، ولـــي پـــردې اســـاس داســـوله مـــل خلقـــي و، ځکـــه دحکمتیارپرخبره څه شك پیداسو.

دکودتـا ترناکـامۍ وروسـته څـرګنـده سـوه ،چـي پـه خوشـباوري سـره دسـوله مـل لـه خـولې رازونـه پرچمیانوتـه ځرګندسوي اوکودتا یې له ناکامۍ سره مخ کړه

## دکودتا دقومندې رهبران

تنـي دهـــوايي اوشـــورمځکني قووتونـــو قومنـــده پرغـاړه واخیسـته پـه دې پـاڅون کـي مځکنـي قووتونـولمړی مرسـتیال دملـي دفـاع وزارت داپراسـون ریـس کبیـر کـارواني اودوهم مرستیال یې جعفر سر تېر وه.

## که حکمتیارصاحب درې ساعته مهلت راکړي!!

دخلقـــي افســـرانو فعـــال غـــړي اودهمـــدې کودتـــا دســـرکردګانو لـــه جملـــې جعفرســـرتېرهغه څـــوك دی ،چـــي ددوئ ددورې ټـول هغـه افسـران ،چـي پـه جګړییـزه حالـت کـي دده سـره ملـه پاتـه سـوې پـردې اعتـراف کـوي ،چـي ترډېـره بیاداافغانســتان پــه اردوکــي دنومــوړي غونــدي پیــاوړي

افسـرډېرکم پیـداکېږي نـه یـوازي دا ،چـي هغـه پیـاوړی افسربلل کېدی.

ورسـره جوخـت ددوئ دهمـدوره خلګولـه خولـو،چي هغـه دخلګـو پـرچم دیـوې پښتوسـړی، وودکودتـا دپیـل څوسـاعته ترمخـه هغـه لـه خپلـو ملګـرو سـره پـه وروسـتي مجلـس کـي دا خبـره وکـړه ،چـي کـه حکمتیارصـاحب دکـو دتـاه تربریـالیتوب وروسـته ماتـه ددروسـاعتونولپاره عمـومي اختیـارات راکـړي خـوښ بـه سـم زه بـه وکـولاې سـم ،چـي ددې دروسـاعتو پـه لړکـي ټـول هغـه لوړرتبـه اوکښتـه رتبـه پرچمیـان لـه منځـه یوسم کـوم ،چـي پـه ملکـي اونظـامي پوسـتونوکي مقـرردي بیاوروسـته حکمتیـارپوه سـه او اسلامي انقلاب یې.

## دپاڅون دپیل ورځ

دملـي سوداګراروانښادصـوفي ولـي محمـد کـاکړورواروا ښادصـوفي ګـل محمـدمالیکوال تـه وویـل ،چـي: سـره لـه دې ،چـي پـاڅون تـهي پیـل کړولـي لمـړی فیرپرتـهي بانـدي جـلال رزمنـده وکـړ تـهی لـه هغـه بـچ سـو، وروسـته هماغـه و،چـي پـاڅون پیـل سـویوبل دسیاسـي چاروتحلیـل ګراستادکاکااسـدالله پوپـل بیـا وایـي: «دچمـن ببـرك پرمخـامخ دجـاده میونـد پـه خولـه کـي پـه دوهـم منـزل مسـجدکي فاتحـه وه زه پـه هغـه فاتحـه کـي وم ،چـي نـابېره

پرجمهوري ریاست اوشا وخواسموالوتکي راپورته سوې لمړی بم یې دپلخشتي جامع ته څیرمه د رود په غاړه کي وموښت او وروسته بیاکودتا پیل سوه.

په میر ویس نیکه عالي لیسه کي زما همدوره خالدبارکزی ،چي ترموږ دري صنفه لوړو هم دهمدې ورځي شاهدی هغه وایي ((زه کشروم زمامشر ورور زه دخپل ملګري داحوال لپاره دملي دفاع وزارت ته څېرمه پنځم خادته ورولېږلم کله ،چي زه هوري ورغلم مالا دوحيد پوښتنه نه وه کړې ،چي داکارپيل سوزه هم تلولځ تلولځ دځان دساتني په موخه په يوه اوبله کوټهٔ دننه سوم ځومي ځان غلی کړ، تريوې شېې وروسته ،چي کله خبره آرامه سوه نوومي ليدل ،چي دملي دفاع له وزارت څخه ځوتنه په سپينو چپنوكي ډاكتران دې رياست ته راوستل سول خو كله ،چي موله نژدې وليدل ډاكتران نه بلكي تنې پلوه جنرالان وه ،چي په دې لباس كي يې ځانونه له نوموړي وزارت څخه ايستل)).

ولي زماليكوال داپېښه ښه په ياد ده. دا مهال زموږكوردهجرت په حال كي په كوټه كي پلاراو ورونه مي په كندهاركي مادسهارلخواد ((حضرت عثمان (رضي الله عنه )) په نوم دمكتب په شپږم ددريم نمرګی په درجه په ټولګی كي دلوست ترځنګ دهمدې مكتب دانظباط ډلي

مرستیالي لرله او دماپښین لخوا مي دبرماهوتېل په «شهید زبیرروغتون» کې دمرستیال نرس دنده درلوده ددې روغتون په مغربي اړخ کې دریمه دېوال دحزب اسلامي حوزوي دفتر و.

دنومورې دفتر ددوهم چت بام پر سردمخابرې له کوټې مخابره ،چې په ډېره منډه لاندې راتاسواوبیاددفتر په منځ کې پریوه پښه وڅرخېد او ویې ویل «سباد خبره په کابل کې یو ټول په را ټول سول ،چې څه پېښه ده ؟ ویل په کابل کې پا څون روان دی ،که خدای کول نوربه دحزب اسلامي ترلوالاندې اسلامي انقلاب پیروزه کېږي».

ګړی پس ،چې دنومورې دفتر رسمیات پرختمېدو وه دنومورې دفتر له رهبري څخه اطلاع راغله ،چې کارونوته دوام ورکړي ترڅو ،چې ددفتردرهبری لخواوروسته بیادرخصتی امرنه وي در کول سوی څوګړیه پس ټول رخصتي سول، زه هم په دغه مازدیګرد کورپرلورستون سوم ،په دغه ورځ زماپلارله کندهارکورته را غلی و ماورته وویل : پلاره! په کابل کي پاڅون دی !

هغه ددې په عوض ،چې ماته څه ووایي ، له ځانه سره وویل:« نجیب یې لکه ،چې دچاییسکو په سر

نوشت اخته کړ، بیایې ،چې کله غټه پلپس راډیوچالانه کړله همدادمقري حماسي غزل وه ،چې :

((چاته به سر ټیټ نه کړم
څو ،چې روح مې تن کې وي
داده ازادۍ خاوره داد ننګیالو وطن
داده توریالو وطن))

دنوموړي غزلي تکرارمې نژدې ترشلوځلوپوري تعقیب کړوروسته راته معلومه نه سوه ،چې تر څوپور یې ورسوله

ددغه غزلي ترڅنګ ترماخستنه پوري د((شهنوازګلبدین)) په نوم دهغوئ دغندني شعارونه ور کول کېدل ما بنام ته ډاکټرنجیب دجمهوري ریاست دزیرزمنیوڅخه قومنده ورکړه ،چې ټول قوای مسلح دا که منظم اوملیشیې ځواکونه دي تیارسی اوسي اونورله دولتي موقف څخه دفاع وکړي شهنواز ګلبدین پرېنږدی ،چې دولتي دستګاه دافراطیونو په لاس ورکړي)) همداوخت و ،چې دمزار په روغتون کي بستري جګړن مصطفي قهرمان یې له بستره راپورته کړ. هغه وکولای دجیټ الوتکي په مرسته دبګرام او کابل دهوایي ډګرونو نظامي رنوې ماته اودجنرال تڼي هوایي ځوواك ورختم کړي.

## ناکامي

دمصطفي قهرمان په دې کړنه سره سره له دې ،چې دهوايي بريدلړۍ په تپه ودرېده ولې بيا هم محمداصف شورتسليمي ونه ويله اوخپل مقاومت ته يې دوام ورکړ دماخستن پرنهه بجې ډاکتر نجيب دخلق ګوندبل غړي محمداسلم وطنجاردملي دفاع وزيرپه توګه له کابل راډيوڅخه اعلان کړ وطنجاروکولای سول ،چې پرپاڅونيانوکړۍ راتنګه کړي نومـوړي دهمدې کارپه ترسره کېدونجيب ته ډاډورکړ،چې نورپاڅون له ناکامۍ سره مخ دی په همدې ماښام دپر چم ډلي پياوړي جنرال بابا جان ته امروکړ،چې خپله قطعه دملي دفاع وزارت پرلوررماته کړي اوپه دې سره وکولای سي ،چې هلته دکودتا زميني قومندانان وځپي دنوموړي قطعه تردمزنګ اوعلاؤالدين تېره اودملي دفاع وزارت ته ورسېده ملي دفاع وزارت ته څېرمه يې په لوډيسپيکرکي پرکودتا ،چيانو ږغ وکړ((شاوخوامحاصره ياست،مقاومت ګټه نه لري،که اسلحه پرمځکه کښېږدئ دملي پوځ اعلي قو مندان اوجمهورريس تاسوته عفوه اعلانوي !!))

شورجواباً ورته وويل :((پښتانه تصميم نه نيسي کله ،چي تصميم ونيسي بيايې نه پرېږدي دا کارپيل سوی تش شعارونه اوتهديدونه کومه ګټه نه لري !!!

ګټه به داوي ،چې داسلامي انقلاب په وړاندي تسليمي وښاياست،واك ملت ته پرېږدی څو وکولای سو دملت دارادې سره سم یواسلامي منتخب حکومت رامنځته سي اوس ــ اوس هم فرصت لرئ»څه ګړی لا مقاومت دوام وکړ وروسته نومړی دجعفرسرتېر،کبیرکارواني په ملګرتیا دملي دفاع وزارت دشالخوا ۸۸ فرقې پرلور وخوځېد ځودهغې په مرسته یو پراخ هجوم را وړي .

دنومړي فرقې خلقي قومندان ،چې ددوئ دقو مندې په تمه و. ددوئ تر رسېدومخکي هملته دیو ه پرچمي قومندان لخوا ترورسوئ و او دنومړي فرقې قومنده هم پرچمیانو په واك کي اخیستې وه کله ،چې نومړي ۸۸ فرقې ته دا خل سول دنومړي پرچمي قومندان لخواورته دتسلیمي وویل سول خوشوراودهغه ملګروتسلیمي ونه ویل څو،چې نومړي دري کسان هلته ووژل سول .

وروسته دنومړودمړيني خبرنجیب ته ورغی او ورته وویل سول ،چې مقاومت ختم دی نجیب ددوئ په اړوند په افسوس داخبره کوله ،چې ما کله هم دشوراو سرتېردوژني امر نه وکړی.

موږدشورغوندي نړیوال ارکانحرب اودسرتېرغوندي بل افسرنه سو پیداکولای هغوی باید

ژوندي نیوله سوي وای ، ولي میرصاحب کار وال دنجیب زړه سوی نه مني او وایي ،چي :((لوامذکورقبلاً امرسیاسي ان بنام حبیب الله که یکي ازطرفداران نجیب قرار داشت بنااًاوجنرال اصف شور،جعفرسر تېر،کبیرکاروانی رابعدااًازمقاومت زنداني نمودندوبعدابه ریاست پنج خاداتتقال ګردیدندوبه امر مستقیم نجیب الله توسط جلال رزمنده شهید شدند)).

سهارکودتا په ناکامي سره پای ته ورسېده دنوموړو دروقو مندانانوجسدونه په داسي حال کي ،چي نیکتهایي په غاړه اونوروداوملګرو یې بحري نظامي دریشیاني په تن وې دملي دفاع وزات مخې ته په چمن کي غورځولي وه خو د ډاکتر صاحب صافي دخپل یوه ګاونډي په حواله دا خبره رد کړې او وایي ،چي((زمادګاونډ دحکایت پر بنسټ چې نوموړی لااوسه هم د امنیتروغتون(شفاخانه قوای مرکز)کې دنرس په توګه دنده لري.

دکبیر کاروانی،اصف شور اوجعفر سرتیر اجساد دکودتا دنکامي په شپه دخاد دپنځم ریاست په لاس،

---

ولګ (( درسهاي تلخ وعبرت انګیز)) دمیر صاحب کار وال اثر ۲۹۸ مخ

دامنیت روغتون ته انتقال اوبیا له هغه ځایه دهغو کورنیو ته وسپارل سول.»

څو، چې دهمدې ورځې په ځانښت دشورد کورنۍ غړي راغلل نوموړی خپل پلارني وطن میدان ښار ته یووړ او هلته یې خاورو ته وسپاره.

دکودتا په لړکې داوویشتمي زغروالي لوا مرستیال ډګروال اسدالله دپخواني وزیر محمود سوما زوم، چې دهمدې پر وګرام په جریان کې دجمهوري ارګ پراستقامت دخپلې قطعې قو منداني تر غاړه وه وا یې:
«په خیرخانه کې روان یونیفارم مې په تن و، چې خلګ اودولتي مامورین په ډېره بېړه له بازاراودفترونو څخه دکورونوپر لور روان وه ماته دتیارسي په ملحوظ دخپل لوړامرلخوادسهاره څخه اطلاع وه خو خبرنه وم، چې څه کېږي؟

زه دنوموړوخلګوپرعکس په ډېرتلوار دخپلې قطعې پرلورراروان سوم تر چمن حضورمې ځان ورساوه هلته دجمهوري ریاست اړوندزغروالـه قطعه اماده باش وه سره تردې، چې زماد یونیفارم پرتېتر دقطعې نخښنه تانګ موښتي و، خوهغوئ دجمهوري ریاست پرلور پرېنه ښودم بیا بیرته دټانګ لوګر پر خوارهي سوم له نوموړي سمي څخه دتېرېدو پروخت له تپه شهدا څخه دراکټ

فیررابانـدي وسـو ،خـو خـدای وسـاتلم اوخپلـي قطعـې تـه ،چـي ترپلـي چرخـي راپـه دې خـواوه ورسـېدم هلتـه مـي دقطعـې قومنـدان تـه،چي دتنـی دوئ دوسـت کېـدی وویـل ((امـر صـاحب حالـت اضـطراري دی مـوږ بایـدمجهز واوسـو))هغه راته وویل ،چي کوم مشکل نه ستړه .

کلـه ،چـي مـي دوهـم ځـل دټـانګونودتجهیز او ،چیـک پـه موخـه پلټنـه پیـل کـړه ومـي لیـدل ،چـي دټولـو ټانګونوسـوزنکان ختلـي دي ریـس خـان تـه مـي وویـل (( دټانګونوسـوزنکان ختلـي دي او تاسـي وزیرصـاحب تـه دفعـالي قطعـې را پـور ورکړیـدي لـه سره یـې وګـوره او بیـارا پـورتېرکړه)) پـه همـدې وخـت مـوږ دجمهـوري ریاسـت پراسـتقامت پرمسـتقیم ډامبـر نـه سـوای تـلای کـوم ،چـي پـه وړانـدي مـو دامنیـت دولتـي اوجمهـوري ریاسـت قوتونـه وه ځکـه لمـړی موپـل چرخـي تـر تصـرف لانـدي راووسـت بیـا دحربـي پوهنتـون ترشـاپرارګ ورسـم سـوموږ ارګ تـه نـژدې سوو .

الله نورهلمنـدی ،چـي دملېشوافسـر دنومړي پیـاده قطعـه اوزمـوږ دټانـګ قطعـه مـخ پـه وړانـدي روانـه وه ثوداميـواج کوتـا راډیوترخپـل تصـرف لانـدي را ولو،کلـه ،چـي موږنومـوړي رادیوتـه پـه ځـومترۍ کـي نـژدې سـوواوهلته قومنـدان ځـدراڼ دکـو دتـاه دبریـا لیتـوب خبرخپـراوه ،چـي لـه

جنرال صاحب اصف شورسره موا ړیکه قطعه سوه ددې سره جوخت اوازه خپره سوه ،چې دټولوخلقي افسرانوغوښتني نجیب ومنلې اودقوس دمیاشتي را په دې خواټول امتیازات منل سویدي موږتوقف وکړ زموږ له توقف سره ګړی پس دتنې په عوض وطنجاروقطعوته دبیرته شاتګ امر وکړ))

## دحوت ۱۹ نېټه

سهاردپاڅون دارامېدوسره سم کابل ته څېرمه په حزب اسلامي پوري اړوند د((لښکرایثار)) غونډ دهغه دقومندان انجنیراحسان الله په قومنده بیرته لوګرولایت ته شاته تګ وکړجنرال تنې اونورپاته جنرالان په دوو الوتکوکي پېښورته څېرمه په پاړه چنارکي کښته سول هلته انجنیرحکمتیاراودپاکستان داستخباراتومشرسکالوسره یې وکتل وروسته نوموړي پناه غوښتونکي دشمشتوکمپ ته ولېږدول سول او هلته پناه ور کول سوه

## عکس العملونه

دکودتا دپیل سره سم په اسلام آبادکي انجنیرحکمتیار دژورنالیستانویو پریس کنفرانس راوغوښت اودهغوئ له لاري یې پرنورجهادي ډلو ږغ وکړ،چې دحزب اسلامي سره ددې پاڅون په لړ کې ددوئ

ترڅنګ ودرېږي،نوموړي دخپل ګوندمو قف په لاندي دووخبرو کي خلاصه کړ.

الف : په کابل کي دي اسلامي نظام قائم سي

ب: دنجیب دحکومت دسقوط سره سم دي دشپږو میاشتو لپاره دغیرګوندي خلګوڅخه نوي اداره متشکله سي هغوئ دي دخپلي اداري په لړکي دازادوانتخاباتوته لاره پرانیزي

## دمجاهدینو دحکومت دریځ

حضرت صبغت الله مجددي ،چي داوخت دنوموړي حکومت ریس وودانجنیرحکمتیاردا خبره رد کړه هغه نوموړی پاڅون دحزب اسلامي ابتکارنه بلکي دکابل درژیم خپل منځي شخړه وبلله

## دنجیب دحکومت دریځ

دکابل حکومت دملګروملتونو پرتهولنه ږغ وکړ،چي یادکودتا ،چیان دي په نړیواله((هاګ)) محکمه کي محکمه کړي

## دپاکستان دحکومت دریځ •

د۱۳۶۸ دحوت پرشلمه نېټه دپاکستان لمړی وزیري بېنظیربوتوخپله دکابیني غونډه را وغوښته اوپه

• وګ ((الجهاد عربي مجله)) پر له پسي ۶۶ ګڼه ۲۳ مخ ۱۹۹۰ اپریل

پاکستان کې یې ددې پرضد ددې ډول کودتا احتمال شونی وباله اودخپل حکومت پرغړویې ږغ وکړ،چې په پوځ کې دنومورې په وړاندې دناراضې پوځیانو دمخنیوي په ملحوظ محطاط اوتیارسئ سي .

## دهند دحکومت دریځ

دډاکټرنجیب په پلوي دهند حکومت خپله رایه ښکاره کړه اولمړی ځل یې دخپلو میډیاووڅخه دا ښکاره کړه ،چې دکابل حکومت بیرته دبګرام میدان په واک کې لري .

## دایران داسلامي جمهوریت دریځ

ایران په کابل کې درامنځته سوي بحران دکابل دحکومت خپله منځنۍ شخړه وبلله اوایران یې له هر ډول لاس وهنې څخه پاک وباله دایران حکومت دروسانوهغه تورونه ردکړه ،چې ګواکې ایران دشهنوازتني په کو دتاه کې لاس لري

## دامریکې متحده ایالتونه

په امریکاکې دشوروي اتحاد اوامریکې دنماینده ګانوترمنځ پریکړه وسوه ،چې دنجیب دحکومت ددوام ترڅنګ دې په سمه کې ددواړولویو هیوادونو دګټو توازن وساتله سي

## شوروي اتحاد

دروسیي دولت نماینده((ګینادي ګراسموف))دا پېښه یوه خونړۍ پېښه وبلله اودژرترژره یوطرفه کېدوغوښتنه یې وکړه .

## دپاته سووخلقیانوسرنوشت

دحزب اسلامي یوقو مندان حاجي اسدالله خان وایي ((تردي وروسته مو نوموړوراغلوجنرالانوته په پېښوركي دوې حویلۍ ورونیول سوې ،چي یوه دځوانانواوبله یې دپخو صاحبمنصبانولپاره وه ، دحزب ددستورسره سم دځه مودې لپاره ماته دنده راکول سوه ،چي هره ورځ نوموړوته ورسم له سپینږروسره به مې مجلس درلوداوځوانانوته موهلته دوالیبال اوباسکیتبال جالونه ورودرول ،چي مابه هلته دځوا نانو سره ترځه دمه پوري دخپلي متعلمۍ ددورې خوښه لوبه والیبال کاوه،نوموړوخلقیانوته وروسته دحزب اسلامي په کوم ارګان کي کومه دنده ورنه کول سوه ،چي دې کړني دخلقي جنرالانو زړونه ورمات کړل.

# شوروي بنديان

روسانو د ۱۵۰۰۰ تنو په حدودو کي دمړو سرتېرو ترڅنګ يو لړ خپل عسکر د بنديانو په څير د مجاهدينو په ولکه کيتر شادرلودل له يوه اړخه د دوئ دپوځ سرتيري وه په بل اړخ کي په شوروي اتحاد کي دهغوئ د کورنيوغړو په ځانګړي ډول د هغوی ميندو په وار وار له خپلو چارواکو غوښتل ،چي زامن يي دمجاهدينو له اسارته را بيل سي دهمدې کړني د ترسره کيدا په موخه دشوروي اتحاد دباندنيو چارو وزير پيښور ته سفر وکړ او هلته يي د مجاهدينو دباندنيو چارو له وزير سره وکتل هغوئ غوښتني درلودي ،چي ددوئ روسي بنديان دي ورايله سي، ولي نوموړي په دې اړوند ددوئ ديوه بندي مورته وويل ،چي: ستا يوزوی دی اوزموږ سره ژوندی دی؛ کېدای سي تاسو يې ووينئ، ولي زه ،چي دمقاومت ديوه مشر په توګه ستاسو سره خبره کوم ،چي پلار او دوه ورونه مي ستاسو د مظالمو په لړکي په شهادت رسېدلي نن دکوم کمونيست ګرېوان ونيسم او د خپل پلار پوښتنه ځيني وکړم .

هغه ورته وويل سره تر دې ،چي ستاسو ډېر بنديان زما سره دي ولي زه دملت دشهيدانو دميندو او لاډونو لپاره د هغوئ په درايله کولو هغوئ ته څه جواب

ورکـړم دابنـدیان بـه پـه دې شـرط درایلـه کېږي.چـې دکابـل رژیـم پـه زنـدانونو کـې زمـوږ ۳۰ زره تنـه بنـدیان را ایلـه او زمـوږ ۳۵ زره تنـه هغـه ماشـومان ،چـې تاسـو دپـښ اهنګـانو پـه نـوم شـوروي اتحادتـه بیـولې بیرتـه افغانسـتان تـه را سـتانه کـړئ •وروسـته تـر دې هئیـت دعبـوري حکومـت لـه ریـس حضـرت صـبغت الله مجدد یسـره وکتـل ،ولـې کومـه پایلـه یـې ور نه کړه

## په هرات کې دکودتا ناکام پلان

دجنــرال تنهـې تــر کودتــاه وروســته کــار مــل پلــوه پرچمیـانو تـه ددوئ پـه نزد ((توبـه لـه مېـږو خـالي وه)) دا یـې پتېلیـې وه ،چـې دډاکټرنجیـب پـه ګوښـه کېـدو نـور پـه افغانسـتان کـې داکثریـت میلیـت واکـداری تـه دپـای ټکـی کښېږدي،ځکه پـر ځـان دپـړي دنـه را اړولـو پـه موخـه دا سـې یوطرحـه تـر کـار لانـدي ونیولـه څـو دوئ دنجیـب پـه احتمـالي ګوښـه کېـدو سـره مـتهم نسـې•د۱۳۶۹ المریز کـال دمیـزان پـه میاشـت کـې پـه هـرات کـې دهغـه ولایـت والـي فضـل الحـق

---

•الجهاد عربي مجله ۷۱ګڼه ۱۱ مخ ۱۹۹۰ سپتمبر میاشت او دحزب اسلامي خپروندویه ورځپاڼه ((شهادت))

• په دې پلان کې لاس وو چې جلال رزمنده په کښې مړخالقیار په کښې زخمي او نور له صحنې لیري وه ولې ((درسهای تلخ وعبرت انګېز))

خالقیار خبر ورکړ ،چې دوئ ته دمخالفینویوه لویه ډله تسلیمېدونکې ده .نوموړي ډلي دتسلیمۍ لپاره داشرط کښېښود ،چي دنجیب دحکومت لخوادملي روغي جوړي داعلان په نظر کي نیولوسره باید ددوئ هرکلي ته پخپله دوخت جمهوررئیس نجیب حضور ولري همدا و،چي دوخت یولوړ پوړی پلاوی دوخت دملي دفاع دوزیراوهرات والي په ملتابه دپښتون زرغون ولسوالۍ ته ورغلل.

کله ،چي دوئ له موټرو او ټانګونوراکښته سول سمدستي ددرنواوسپکووسلوبرید پروسو په دې سره دهرات والي خالقیار ټپي اوتسلیمېدونکي بیرته په خپله لاره پسي ولاړل نجیب دهرات همدا ټپي والي دوخت دصدر اعظم ((کشتمند)) په ګوښه کېدو سره دلمړي وزیر په توګه مقررکړ دسلطان علي کشتمند په اړوند دوخت ځینو سیاسیونو دا نظر ورکړ ،چي دتېني ترپاخون وروسته دبېرک پلوه پرچمیانوتر زیر پرده ائتلاف لاندي په مسائلو خبرخپور سوهغه دافغانستان هزاره قوم ورونوته دستوروركړ ،چي له پښتنو څخه دخلاصون او دزیات واک لاسته راوړلوفرصت یې همدااوس دی حال دا،چي پښتنوهیڅ کله له چانه حقوق نه وه اخیستي بلکي دخپل اکثریت میلیت په تقاضایې دخپلو بشپړوحقوقوغوښتنه هم نه وه کړې

# افغان مجاهدین دفارس په خلیج کي

ناټو ته نور دکمونیزم دتغر دټولېدو بنه چانس ترلاس کړاو دخپلو متحدو عربي هیوادونو په پایخو کي يې کیکه ور ایله کړه چي سبا دهیواد او بل دهغه بل عربي هیواد داشغال واری دی چي د صدام له لوري به دکویټ په سرنوشت اخته کېږي .

اردن ، سعودي عربستان ، عربي متحده امارات او قطر هیوادونو مشرانو دخپلو خاورو دساتني په موخه دامریکي په مشرۍ دناټوسر تېروته په عربي صحراو کي دصدام حسین دتجاوزدمخنیوي او پر عراق دبرید په خاطراجازه ورکړه.

دناټو دسرتېرو دپلي کېدو سره سم دپاکستان اسلامي جمهوریت سره په شمول دناټو او سعودي عرب په پلوي سرتېري واستول . په منځني ختیځ ، منځنۍ اسیا او ځینو نورو هیوادونوکي ازادي غوښتونکي سازمانونه هم بې پرې پاته نه سول چا دعراق او چا دناټو په پلوی شعارونه اوچت کړل افغان مجاهدینو چي دشوروي له جګړې فارغ وه سوي ول ، ولي په یوه اړخ کي د ډاکټر نجیب الله دحکومت پر ضد او په بل اړخ پخپل منځي شخړو اخته پر درو برخو ووېشل سول یو په ایران کي اته ګونی مېشت اتحاد وو دصدام سره دعقدي په خاطر ددې جګړې رواني ملاتړ

کـاوه ، بـل اړخ یـې اووګـوني جهـادي تنظیمونـه ول ،چـې پـر دوو عمـده برخـو ویشـلي ول ، دحضـرت صـبغت الله مجـددي پـه مشـرۍ نجـات ملـي ، محـاذ ملـي ، حرکـت انقـلاب اسـلامي ، جمعیــت اســلامي ، اتحــاد اســلامي خپــل مجاهــدین دسـعودي پـه ملاتـړ سـیمي تـه واسـتول خـو انجنیـر ګلبـدین حکمتیـار او اروا ښـادمولوي خـالص خپـل کسـان ونـه لیـږل دهغـوی دلیـل چـې صـدام اوکمونیسـت دی .ولـې نـه غـواړي چـې دعراقـي عسـکرو پـه وړانـدي خپـل دامریکـي پـه پلـوي وجنګوي .

## یوځل بیا دقضیې دحل اړوند سیاسي حرکتونه

دمجاهــــدینولپاره دامریکــــې تــــاکلي سفیرپیټرټامسن دواشنګټن پوست په حواله وویل:

((دافغانسـتان قضـیه بیلـه محمـد ظـاهر پـه بـل چـا نـه حل کیږي))

پـه ایتالیـاکي پخـواني پاچامحمـد ظـاهر*خـان وړانـدیزوکړ ،چـې کـه لویـه جرګـه راوغوښـتل سـي اودهغـې لـه لاري دي نوی حکومت او نوي زعیم ته لاره هواره کړي .

اسـتاد سـیاف دنجیـب خبـره یوتوطیـه وبللـه اوویـې ویــل ((ترڅومهاجرافغانســتان تــه تللــي نــه وي او دنجیــب

*الجهاد عربي مجله ۷۱ګڼه۹ مخ ۱۹۹۰ سپتمبر میاشت

حکومت تسليمي نه وي ورکړي موږخپل مقاومت ته دوام ور کوو))

حکمتيار وويل ((لويه بين الافغاني شوراى دي را وغوښتل سي ،چي واك يي دجهادي ګوندونو په لاس کي وي هغوئ دي له نجيب واك تسليم کړي دا شوري دي دانتخاباتو کميسيون جوړ،او شپږ مياشتنۍ موقته اداره دي جوړه کړي تر څو ازادوانتخاباتو ته لارهواره سي ))

مولوي خالص وويل (( دنجيب دعوت مجاهدينوته دروسيي او امريکې ګډه طرحه ده تر څوپه دي سره وکولای سي دمجاهدينو صفوف ورضعيف اوګډ وډ کړي•))

دنجيب حکومت دسرورمنګل په مشرۍ يوپلاوی روسيي ته وا ستاوه ،چي دخپل سفر په ترڅ کي يي ديولړمجبوريتونو پربنسټ يي دا سي سياسي چالشونوته ملاوتړله ،چي بياهم دخلق اړخ په تاوان وه ددي پروسي دپلي کولو لپاره يي هغه خلقيان ،چي په ۱۳۶۷ لمريز کال کښي دلوړ رتبه خلقيان په کار ګمارلي وه دمرکزي کميټي دامهم غړي ظهور رزم جو او صالح محمد زيری يي له مرکزي کميټي څخه وايستل• ډاکترنجيب پرخپله

••الجهاد عربي مجله ۷۱ګڼه ۱۰ مخ ۱۹۹۰ سپتمبر مياشت

• وګ (( درسهاي تلخ وعبرت انګيز)) ۱۶۱ مخ

پالیسي له سره په غورکولو د۱۳۶۹المریز کال داسد پر ۵ مسکو ته سفر وکړ او عبدالرحیم هاتف یې دسر پرست جمهوررئیس په توګه په کابل کې پرېښود
تردې راګرځېدو وروسته ځینې سفیران بدل او په عوض یې :

- محمد اصغریو ګوسلاویاته
- حشمت الله وشمالي کوریاته واستول

وروسته یې دشوروي اتحاددپخوانۍ هغې طرحې په تعقیب خپلې کړنلارې ته دتلې خبره برابره کړه؛دې کړنودکتورنجیب ته موقع په لاس ور کړه،چې له بېلابېلوتاکتیکونوکارواخلي اودرې ځلور ډوله پروسه پرکار واچوي:

- دټولوزونونوتنظیمه ریاستونو دریسانو

پرلاس دځینو میانه روه اوپرقومي عقایدو ولاړو جهادي قومندانانوسره اړیکې دپیسولېږد او دهغوئ تړواک لاندې سموکې دجګړې توقف .

- دپاکستان دلومړۍ وزیرې بېنظیربوټو،

*دفلسطین دالفتح دګوند مشریاسرعرفات اوعراقې جمهوررئیس صدام حسین په منځګړیتوب دحزب اسلامي حکمتیارسره اړیکې اودې اړیکو دبشپړولواو سرته

*وګ دښاغلي حکمتیار اثر ((پټې توطیې او بربنډې ځېرې))

رســـولولپاره وروســـته بیاپـــه عراق،لیبیااوفلســـطین کـــې
دحـزب اسـلامي لخـوا دعبدالقـدیرکریاب اوغیـرت بهیـراو
دنجیــب لخوامحمداســلم وطنجار،ســلیمان لایــق،جنرال
یعقوبي اونجم الدین کاویاني ترمنځ دخبرو ناکامه پایله.

- امریکې ته تګ.

ددې منـډوترړوترناکامۍ وروسـته پـه پایلـه کـې لـه
ارو پــایې هیوادونوڅخــه ایتالیاپــه کابــل کــې ســفارت
پرانیســت بیادمجاهـدینولپاره دامریکــې دمتحـده ایـالتونو
تاکـل سـوي سـفیر پیترتامســن وړانـدیزوکړ، ترڅودپخـواني
پاچامحمـدظاهر خـان پـه مشـرۍ لویـه جرګـه راوغوښـتل سـي
محمــدظاهرخان داخبــره ومنلــه اودلــویې جرګــې دجوړېــدو
خبري تودې سوې

•پورتــــــه دیــــــادوو ســــــوو وړانــــــدیزونو
اوارېکوتردرلودلووروســته پــه رســمي ډول د۱۳۶۹ پــه میــزان
کــې میانــه روو جهــادي ګونـدونو تـه بلنـه ورکـړه سـوه•،چـې
دده سـره ګـډ حکومـت جـوړکړي دا حکومـت بایدپـه داسـې
حالـت کـې جوړسـې ترڅـو نـوی مخـتلط حکومـت دمجاهـدینو

---

•الجهاد عربي مجله ۷۱ګڼه ۸ مخ ۱۹۹۰ سپتمبر میاشت
•ولې ((درسهاي تلخ وعبرت انګیز))

او کمونیستانو تر منځ جوړېږي دمو قتي دورې ریاست به هم دنجیب پر غاړه وي •

په دې اړوند دخلق دیموکراتیک ګوند دسیاسي بیروغړي او د تشکیلاتوریس میرصاحب کاروال وایي «..... وبعدا ولایت کندهارانتخاب شده بود ،در نتیجه برخورد های نمایشي میان ارګانهای امنیتي کندهار ګروپهای میانه رو( ګیلاني وطرفداران ظاهرشاه) به مجاهدین تسلیم میګردد وانها حکومت موقت اپوزیسیون را تشکیل میدهند بعدا مذاکرات میان رژیم نجیب وحکومت موقت اپوزیسون در کندهارتامین ګردد ..... اولاګلبدین حکمتیارااین پلان رادرک نموده وبالای کندهار حملات خویش را ادامه میدهند» •

دنجیب دوځ ددې طرحي په وړاندي عکس العملونه بیلابیل وه

په ایتالیا کي پخواني پاچا محمد ظاهر •خان وړاندیز وکړ ،چې لویه جرګه را وغوښتل سي او دهغې له لاري دي نوي حکومت او نوي زعیم ته لاره هواره کړي

• الجهاد عربي مجله ۷۱ګڼه ۸ مخ ۱۹۹۰ سپتمبر میاشت

• وګ« درسهاي تلخ وعبرت انګیز»

• الجهاد عربي مجله ۷۱ګڼه۹ مخ ۱۹۹۰ سپتمبر میاشت

په همدې ترڅ کې دپاکستان نیشنل ګوند غړي افراسیاب خټک پرپاکستان تور ولګاوه ،چې دوئ دافغاني مهاجرو په لېږد کې لټې کوي او زمینه نه ورته برابروي ،چې خپل هیواد ته ستانه او دکابل له حکومت سره یو ځای سي

کله ،چې دنجیب له اړخه دې کړنواوو راندیزونوکومه پایله ورنه کړه نو وروسته یې ډاکټر نجیب دپاکستان دعوامي نیشنل پارټۍ دمشر خان عبدالولي خان په منځګړي توب په دوهم ځل حزب اسلامي ته وړاندیز وکړ ،چېدجمهوري ریاست په ملتوب لس کلیدي وزارتونه دکابل په حکومت کې دونډي په توګه واخلي دحزب اسلامي اوپرچم ترمنځ یوه ائتلافي اداره را منځته کړي.

دي وړاندیزهم کومه پایله یې ونه درلوده داهغه وخت وو ،چې انجنیر حکمتیاراوډاکټرنجیب ته لاداخبر ګنده نه وه ،چېدجمعیت اسلامي «شوراي نظارمشراحمدشا مسعود»، جنرال دوستم په مشرۍ جنبش ملي ، حزب وحدت اسلامي،سیدکیان نادري دپښتنو دحکومت دمخنیوي په موخه یوائتلاف جوړکړیدی دي ټولومنډوترړوکومه پایله ورنه کړه

په دې حساسو شېبو کې دنجیب دحکومت پخوانی پلوي روسیې داوخت هم نجیب ترشاپرې نه ښود
نجیب دممکنه بریالیتوب لپاره دروسیې دوخت جمهوررییس بوریس یلتسن څخه ۴۲ میلیونه طلایې ربله مرسته وغوښته، چې هغوئ بېلا عوضه ورکړه
یلتسن وویل «که افغان حکومت وسلې ته اړتیا پیدا کړي روسیه حاضره ده، چې له دوئ سره مرسته وکړي»

## دزابل وروستی مدافع حالت

ډاکټر نجیب په دستوردجنرال دوستم او دهغه ۳۵زره کسیزي ملیشئي ډلې په وسله تجهیز دپښتنو په سمه کې خصوصاً په جنوب کې دا سې څه وکړل، چې، دسمې ډېرخلك دنجیب له حکومت څخه بېزاره سې حتی تردې، چې همدا ازبك ملیشې په ځینو مواردو کې پخپله ددولت پلوه پښتني ملېشو دعصمت مسلم له ملیشئ قومندانانو «محمدعوض او.... »سره په کندهارښارکي دترېګنیو سره مخ سوې ددې سره جوخت دکندهاري مجاهدینوسره په سختومخامخ جګړوکې راایساري سوې، چې هره ورځ ورته ناتاروو، چې سخته جګړه یې په د۶۶سنې په منې کې په محالـه جات کې دشهید عبداللطیف شیرزي، ملا محمدرباني،

ملامحمداسمعیل ،قومندان حاجي اسدالله خان او ملا بور جان له شدید مقا مت سره مخ او له سهاره تر غرمې یې ۹۵تنه مړي تلفات ور کړل. بیرته ماپښین دماله جات له سمي را ووتل .

تر دې جګړې وروسته دوخت دتنظیمه ریس نورالحق علومي په وړاندیز بیرته کابل ته واستول سول او بیاپه دوهم ځل د۱۳۶۹ المریز کال په ژمي کي کندهار ته را ولیږل سول ،خو پرقلات ښارباندي دجمعیت اسلامي قومندان ملانقیب الله ((ملاګل اخند)) په مشرۍ محاصره ماته کړي .

دا مخامخ جګړه په ۱۳۶۹ المریزکال دکندهار قلات دلاري ترمنځ دحاجي محمدنعیم (ګراني)، حمیدالله توخي اونورومجاهدینوترسختوبریدونوراغلل.

نومړي ولایت ته یې دمرستي رسول هدف وه دخوکلونو په تېرودو سره دې ملیشاوي ،چي خو مره په جلال اباد زابل او نورو سمو کي پاته کېدل هغومره دافغان عامه ولس په ځانګړي ډول پښتنوپرنجیب بې باوري زیاتېدله .

## دکندهار پرهوايي ډګر دعملياتو پيل

ددولت له خوا مجاهدينو پر محاذونو سخت تعرضونه چي په يوه ورځ ۱۱تعرضه يې تر سره کړل، دتعرضي راتلږ سره ضد پرسونل، قنداني ماينونه ، دستګاوي يې ښخي وې . مجاهدينو په غبرګون دکندهار پر هوايي ډګر عمليات پيل کړل دا عمليات ډېر تباه کوونکي ول .

دجګړې شدت دحزب اسلامي امير حکمتيار اريست ،چي خپله په مخفي ډول دې جګړې ته راسي او حالات له نژدې وڅاري .

حکمتيار دمجاهدينو پر قربانيو باندي په تفصيل دکندهار په وحدت خوښي څرګنده کړله او دحزب تر ځانګړو علمياتو يې دکندهار دټولو جهادي ګوندونو دنظامي شورا فيصلي او روانو علمياتوته تر جيح ورکړه .پر هوايي ډګر زياتي مشترکي قرباني ددښمن دکمزوری اوتسليمی حالت و دهوايي ډګر تر نظامي فتح وروسته دکنترول او امنيت دنظام لپاره دکندهار دقومندانانو شورا ،په همدې حالت کي په کندهار کي دجمعيت اسلامي دولايتي شورا ديوه ګروپ

دنفرو تعروضي جنګ دحزب اسلامي دشهید حاجي محمود دجبهې مربوطه ګروپ ((عبدالعلي)) باندي وسو.

دنورو جهادي ګوندونو قومندانان دجمعیت او حزب ددې جګړې څخه شدیداً متاثر او دمنځګړو په توګه دواړو طرفونو ته ورغلل ، دسولي له نفرو څخه دحاجي محمد ابراهیم جان قومندان او ملګري یې شهیدان او مرکچیان بندیان سول . مشران له دې حالته څخه خبر سول،داخبر خپله مجاهدینو ته ورسید ،چي په دې هغوی پر هوایي ډګر دبرید له لیکو راووتل،دټولوقربانیو نتیجه تباهي اودهوایي ډګرنظامي فتح ناکامه سوه .په دې جګړه کي دکندهار دلمړینو پاڅون کوونکو له جملې قومندان رحمت الله ګدا هم په حق ورسید.[12]

---

[12] [[شهید ملا رحمت الله ګدا ((ابورحیم)) دمرحوم خلیفه ملاعبدالقدوس اخوندزاده زوی په ۱۳۱۹ لمریز کال په کندهار کي زوکړی دی . پلرنی مېنه یې دکندهار ولایت دارغستان ولسوالي وه ، په ۱۳۵۰ لمریز کال دحزب اسلامي افغانستان سره ،چي خپل تعهد وکړ، په ۱۳۵۷ لمریز کال کي په مسلح جهاد پیل وکړ ، دیوې جبهې دیوه قومندان په توګه دنده پر غاړه په ۱۳۶۰ لمریز کي حزب دخپلو جبهه یې تشکیلاتو پراختیا په موخه دمرحوم ګدا صاحب جبهه پر درو عمده برو ووېشله چي دیوې برخي مشري خپل ګدا صاحب ، ددوهمي برخي مشري یې مرحوم حاجي عبدالصمد مومند دکندهار دامان ولسوالۍ دمنډحصار سیمي اوسېدونکی او ددرېیمي برخي مشري دبناغلي

حاجي عبدالقيوم، چې دكندهار د كلچابات ((قيلج آباد)) دسيمي داوسېدونكي پرغاړه سوه .

شهيد ګدا صاحب له افغانستان دشوروي لښكرو تر وتني ٨مياشتي وروسته دكندهار پر نړيوال هوايي ډګر ديوه پراخ تعرض په لړ كي په شهادت ورسېد .

نوموړي په ژوندانه كي له شعر او شاعرۍ سره مينه درلود ، هم يې شعرونه ليكل او هم يې لوستل . دشعرونو متوسط غونډ ،چې ډېره برخه يې تصوفي او عرفاني بڼه لري پاته سوی ، دنوموړي كتاب يو شعر يې په لاندي ډول ،چې دخپلي مړيني څخه څو ګړيه تر مخه يې ليكلی :

پر ميدان دكربلا تړو نكاح
آزادي راځي كه نن وي كه صباح
ستا دفضل واوريځ ته په اميد يم
دا درخواست مي ستا په دركي كړې مباح
دشهيد په وينو رنګ دافغان خاوره
شهيدانو په كښي وبازل جناح
((ولاتقنطو من رحمة الله ))ناست يو
له سره اوره مي را وساتي ارواح
درحيم رحم ته ناست دده په دركي
خوار ((ګدا))رحمت الله غواړي سلاح

وګ :البيان مجله د١٣٨٩كال لمړۍ ګڼه ، داروابشاد ګدا صاحب ديوان

## دخوست فتحه

دانجینیـرفیض محمـد منګـل اوجـلال الـدین حقـاني پــه مشـرۍ• دخوســت پــه ســمه کــي ددې ســمي دنیــوني پــه موخـه پـراخ عملیـات پـر۲۷حـوت۱۳۶۹ییـل سـول سـره تـر دې ،چــي دنجیــب پــه حکومــت کــي دپیــاوړو جنرالانــوجنرال عبدالظاهرسـوله مـل او دوخـت مقتـدر وزیرجنـرال نظرمحمـد لـه خوسـته سـاتنه کولـه پسـله څـو ورځـو د ۱۳۷۰ کـال دحمـل پر۱۲• نېټه خوست مجاهدینو ونیاوه پردې اساس.

ددې جګــړې څــه مــوده مخکــي دنجیــب حکومــت دجـلال اباد څخـه بریـالۍ دفـاع کـړې وه او دخپلـو سـر تېـرو روحیــه یــې ډېــره پیــاوړې کــړې وه دخوســت دې نیــوني یــې داردو روحیـات ورکمـزوري کـړل حتـي دځینیـو روایـاتو پـر بنســټ ،چــي دخوســت دســقوط پــر مهــال نجیــب دجمهــوري ارګ دننــه ځــان خپلــه بنــدي کــړي او کــوم چاتــه یــې دخپــل ملاقات زمینه نه برابروله .

• وګ ((شهادت اخبار)) ۱۳۷۰ حمل
• وګ (( درسهای تلخ وعبرت انګیز)) ۲۳۰ مخ

## دمجاهدینو پلاوی روسیې ته

دسعودي عربستان اوعراق دحکومت په وساطت په جده کي دروسي سفير له پروفيسوربرهان الدين رباني سره په داسي حال کي وکتل ،چي مولوي محمد نبي محمدي ،کريم خليلي ، او .. ور سره مله وه دروسي سفيرپه بلنه دمجاهدينودې پلاوي د ۱۳۷۰ کال دعقرب په مياشت کي مسکو ته سفر وکړ• .

دې هيئت د ((رباني )) په مشرتوب په مسکوکي دروسي لوړ پوړو چارواکو سره دلړم له ۲۰ تر ۲۴ پوري متفرق ملاقاتونه لرل،چيترراستنيدوترمخه يې دروسيې ددباندينو چارو له وزارت سره موافقه لاسليک کړه.

له روسيې څخه دراګرځيدو پرمهال هغه له اسلام اباده وتهران ته سفر ودرلود ،چي په دې سفرکي يې دايران ددباندينوچاروتروزير سربېره د تاجکستان ددباندیو چارو له وزيرسره ليدنه درلوده د استادرباني دې کړني په مجاهدينوکي نور اختلافات را منځته کړل. ددې ملاقات اړوند دنورو جهادي ډلو اړخ په کلکه له دې ليدني څخه مخالفت وکړاودايې په راتلونکي کي دپروفيسور برهان الدين رباني اواړوند هيئت او روسيې دهيوادترمنځ

• وګ (( سفر هيئت مجاهدين به مسکو))

ترکاسه لاندې نیم کاسه جوړجاړئ وباله. حزب اسلامي دایو فارسي مثلث وباله ،چې دروسیې پوره حمایه یې ترشالرله ملل متحد پردې اساس ،چې داسلامي جمهوریت په نوم په افغانستان کې درباني دنوي حکومت په اړوند اندېښنه وښوول او په غیر مستقیم ډول په افغانستان کې داسلام په نوم دبل روسي پلوه حکومت داقتدار تر لاسه کولو نخښه وبلله•

## پرپخواني پاچامحمدظاهر دترور هڅه

همدا وخت وو چې هرڅه هره ورځ په د اووښتو په حال کې وه ددې په عوض چې دافغان مقاومت ګډونوال ټول پر یوه تغر را ټول سي او داسلامي انقلاب تمثیل په فاتحانه ډول وسي داسي ونه سول بلکه له بېلابېلو لارو دمقاومت او مجاهدينو په صفوفو کې دبېلتون او جلاکېدو هڅي خپل اوج ته رسېدلي وې.

په کنړ ، هلمند ، تخار، پنجشیر ، کندهار او هرات کې د ډاکټرنجیب دحکومت تر ځنګ جهادي تنظیمونو یو دبل په وړاندې جګړییزي جبهې درلودې چې تر ډېره یې په یوه اړخ کې حزب اسلامي او په مخالف اړخ کې یې محاذملي اسلامي ، دعوت اسلامي سلفي ،

---

• وګ «دشنه های سرخ» ۸۱ مخ

جمعیت اسلامي ، شورا نظار او حرکت انقلاب اسلامي محمد ول .

۱۳۷۰ لمریزه سنه وه او ډاکټر نجیب الله دحکومت سقوط ته یوکال پاته وو .

په همدې وخت کې یې پخواني پاچا محمد ظاهرخان باندې دهغه په کورکې دیوه نفر لخوا چې ځان یې پرتګالی او خبریال معرفي کاوه تر یو نیم ساعت مصاحبې وروسته چې په انګلیسي یې خبرې کولې دلرګي په چاړه درې ځایه پر مخ ، او لاس وواهه ، چې تر دې وروسته نوموړی تن دپولیسو لخوا ونیول سو تر پلټنې وروسته معلومه سوه چې نوموړئ سړی پر تګالی نه وو .

ددې پیښې په اړه دایټالیې دکورنیو چارو وزیروویل : پلان له مخکې طرحه سوئ یوو، او ژمنه یې وکړه چې ایټالیا به ددې دسیسې اصلي ټکي پیدا کړي .

په روم کې ددې پیښې له امله په افغانستان دخیلوګوندونو او سړیو لاندې عکس العملونه وښوول :

**د ډاکټر نجیب الله حکومت :**

دپخواني پاچا محمدظاهر شا په چاړه وهل او دده پر ضد تیرې دمقاومت ((بنستپالو ډلو)) لخوا سوی دی .

**افغان ملت ګوند :**

دتروریستانو دغه حمله چي په دغه حساس وخت کي دافغانستان پر پخواني پاچا وسوه افغان ملت ګوند يې په کلکه محکوموي .

ترور داسلام ددين له نظره او دنړۍ دټولو مدني او بشري قوانينو له نظره يو محکوم عمل دی . او موږ يې په کلکه غندو ، موږ په فکر دغه پېښه يا دغه عمل دافغانستان دښمنانو تر سره کړې دی نو په دې خاطر غواړي دافغانستان دموثرو خواوو تر منځ بې اعتمادي پيدا کړي .

**د محمد ظاهر خان زوم سردار ولي :**

((اعلحضرت محمد ظاهر شا دهغه سوء قصد څخه چي دمخربينو لخوا تر سره سو نجات موندلی دی ))

**ملک يارمحمد بارکزئ**

بي بي سي ته دنبي مصداق په جواب کي :

پرون تور ببرغونه او دمحمد ظاهر شا عکسونه پورته سول ، نن سهار د۸بجو څخه بيا تر ۱۲ بجو پوري دمېزۍ هډې او بيا تر لوړې پوري ، سيداحمد لوړې پوري ، داروډ بند ولو ، دکانونه وتړل سول ، داوو تنظيمونو خلکو قومندانان ، حاجيان اوملايان ټول راوتلي ول . په غونډه کي داتصميم ونيول سو چي موږ په کلکه تروريستانيان غندو ، چي دمحمد ظاهر شا دقتل لپاره

يې سوال جوړکړی وو .او موږ به دهغه چا چې دهغه اسباب يې جوړ کړی،چې دغه اصلي منبع پيدا سي، دغه سړی دي دعبوري حکومت محکمې ته وسپارل سي .

زموږ دټولو داخواهش دی .

**دپاکستان جمهورريس غلام اسحق خان**

موږ ددې مجرمانه او بزدلانه حملې څخه زيات خواشيني يو ، موږ هغه ته د ژر صحت هيله لرو .

**دافغان مجاهدينو اهل تشيع مشترکه شورا**

پر شا باندي حمله دهغه دغير منصفانه عملونو نتيجه ده .

**مولوي محمد يونس خالص**

پر پخواني پاچا باندي حمله دافغانستان ملت ته تحقير کول دي ،ماهيڅ کله دظاهر شا دبيرته راتګ غوښتنه نه ده کړې او نه هم ور سره ملاتړ لرم خو هيڅ کله به پرده او دده پر کورنۍ دترور عمل قبول نه کړم . که پخوانی پاچا ددې ټپونو څخه مړ سي بايد جنازه يې خاوري ((افغانستان)) ته راوړل سي .

**نواب سليم ((دحزب اسلامي حکمتيار)) نماينده** :

پر پخواني پاچا داحمله د شوروي او امريکا لخوا په ګډه سوې ده کوم چې غواړي دافغانستان دمسئلي او

رواني لانجې حل ناقص کړي . دا لړ يوه ډرامه غوندي وه چي زړه سوئ را جلب کړي ، دا دومره مهمه موضوع نه چي بعضي خلګو به تودو احساساتو خپل عکس العمل وښود

## په شمال کي ائتلاف جوړوني

۱۳۷۰ المريز کال پاياليمي او ۱۳۷۱ دلمريز کال پيلامې ددکتورنجيب الله دحکومت لپاره يوښه شګون نه درلودداوخت دافغانستان دجمهوري حکومت په يوه اومړي تارمانده وو هره ورځ ددي انتظارکېده ،چي څه بايدپېښه سي خوست اوځينو نوروولسواليونوي سقوط کړي وولـه دکنړ ، تخاراوروزګان پرته دنورو ولايتونو ښاري حوزې دکابل دحکومت په لاس کي اوپاتي سمي دلويو لاروپه شمول دمجاهدينوپه ولکه کي وې .

هغه سمي ،چي دحکومت په واک کي وې دامنيت له پلوه ډاډ حاصل اوتريوې اندازې خلګوداارام ساه پکښي اخيستای سوای يوازې دکابل،کندهار،هرات،جلال کوټ اومزار په ښارونوکي دمجاهدينوله طرفه ديوه پراخ هجوم دراوړلو ويره وه ،چي نا څاپه شمال کي ښورښ رامنځته سو.

## شورش اود جنرال مؤمن سرغړونه

دشــوروښ اصــلي علــت ددې نظــام داعلــي قومنــدان پــه توګــه دډاکتــر نجيــب الله لــه امــره دجنــرال مــومن ســرغړونه وه ،نجيــب وغوښــتل ،چــي نومــوړۍ لــه حيرتــان بندرڅخــه کابــل راتبــديل کــړي ؛ده داپرېکــړ ونــه منلــه وروســته ددې پېښــې پــه ښــکيل کــي دازبــک ملېشــو مشردوســتم هــم برخــه واخيســته. نجيــب دوضــعي دارامــۍ پــه موخــه دملــي دفــاع وزارت لــوی درســتيز جنرالنبــي عظيمــي دســتونزي دهــواري په موخه سمي ته واستاوه.

ددې پــه عــوض ،چــي هلتــه دنومــوړي پــه ورتــلګ شــخړه هــواره ســي نــور يــې زور واخيســت دمــزار ولايــت والــي او دشــمالي ســمت تنظيمــه ريــس محمــد جمعــه اخــک نجيــب تــه وړانــديز وکــړ ،چــي دوســتم، بــا بــا جــان ، جنــرال مــومن ، رســول پهلــوان او لــه کابــل څخــه رالېــږل ســوی لــوی درســتيزنبي عظيمــي دتــوطئې پــه لټــه کــي دي اوبريــد تــه امــاده ګــي نيســي خــو داوخــت پــه ولکــه کــي راتــلای ســي دۍ(جمعــه اخــک)) کــولای ســي ،چــي لاس ترلــي يــې راايســار او دښــوروښ مخــه ونيســي ولــي نجيــب دې کــار تــه زړهښــه نــه کــړ اوعوضــاً يــې محمد جمعه اخک له دندي ګوښه کړ.

## دپروان ولایت نیونه

په دي وخت کې دحاجي عبدالصبورفرید ،قومندان محمد کریم اغا او .. په توسط دحزب اسلامي قومندانانوشکردره،ګل دره اوبیا یې دپروان ولایت د ۱۳۷۱المریز کال دحمل پر ۱۲ ونیول . چې دا حزب اسلامي دافغانستان دفتحې او دلته دکمونیستي نظام پا یلامه وبلل.

## دجبل سراج معاهده

ددې سره سم شوراي نظاردجبل سراج ولسوالي ونیوله په نوموړې ولسوالۍ کې دنجیب په وړاندي له پښتنوپرته دهغه مخالفو ډلو مشران ،چې عبارت دي له :

احمد شا مسعود ،سید نادرکیان،جنرال مومن،جنرال عبدالرشیددوستم او ....را غونډسول او ترخپل منځ یې دائتلافي حکومت جوړولو معاهده لاسلیک کړه.

## کابل ته دانتقالي حکومت ننوتل اوستونزي

کابل ته داوضاع دکنترول په موخه دنبي عظیمي لخوا له نجیب څخه دقواوودرا انتقال دامر غوښتنه وسوه ،هغه په نافهمي سره پرځان دکړې درا تینګولوداامرصادرکړ ،چیدوستم قوتونه راوغواړي .

مزارجمعیت اسلامي او حزب وحدت اسلامي ونیوله

په پروان ولایت کې دحزب اسلامي نفوذلرونکی قومندان استاد عبدالصبور فرید دخپل ولایت دساتنې په ملحوظ له مسعوداودوستم دوئ سره ځان په شخړه کې راګیرنه کړهغوی ته یې لاره ورکړه ،چې دپروان له لارې کابل ننوزي.

نجیب په کابل کې دسالم انتقال په موخه ددبادنیو چاروزیر جنرال عبدالوکیل جبل سراج ته ((مسعود))او دملي دفاع وزیر جنرال محمد رفیع یې چهار اسیاب ته ((انجنیر حکمتیار)) ته ور واستول .

دې کار ګټه ونه کړه همغه و ،چې د ۱۳۷۱المریز کال دوري دمیاشتي پر(۲۲) نېټه له کابله وتلو ته اړسوددوستم قوتونودخواجه رواش له میدانه راوګرځاوه او بیرته یې دملګروملتونودفترته پناه یووړه .

سره تر دې ،چې له کابله دنوموړي دتیښتي خبره دکابل له هوایي ډګر ددوستم دملېشو له خوا دنوموړي ګرځېدل ډېرو میډیاو خپره کړه،خو دوخت په حکومت کې فعال عبدالرحیم ((هاتف)) داخبره نه مني او وایي ،چې هغه مستقیماً د ملل متحد دفتر ته پناه یووړه.

# بې رهبره افغانستان

د ډاکټرنجيب الله تر استعفي وروسته،تر يوې ټاكلي مودې پورې افغانستان بې رهبره پاته سو په پېښور كې دجهادي قيادي شوراى دځو غونډو جوړښت ، په يوه اړخ كي ، د شمالي ائتلاف لښكركښي دكابل پر لور په بل اړخ كي ، د لوګر له لوري دحزب اسلامي دلښكر ايثار غونډ دربدل دكابل په جنوبي دروازو كي ددې ځنډ لامل سوه .

نجيب تر خپلي استعفي وروسته دوطن ګوند ((كمونيست ګوند)) دځو كسيزي شوراى دپر مخ بېونلډ لپاره دجمهوري رياست دمرستيال عبدالرحيم (( هاتف )) انتخاب دسرپرست په توګه داسي ګمارنه وركوله ،چيځه موده مخكي شوروي اتحاد ته دجمهورريس ډاكتر نجيب الله دسفر پر مهال دحاجي محمدځمكني غوندي ((استاد عبدالرحيم هاتف)) سرپرست جمهورريس وټاكه ، خودي وخت او هغه وخت ډېر توپير درلود داوخت افغان حكومت د لپډر شيپ او مديريت دتغير په حالت كي وو.

نوموړي ديادو شورا ګانو دانسجام مسئوليت مانه ،خو بي بي سي راډيو ته يې ديوه مركې په لړ كي دا ويلي وه ،چي دوئ وايي ،چي ته ((هاتف)) سرپرست جمهورريس يې ،خو ما تر اوسه نه ده منلې،په بل اړخ كيدهغه منلو وروسته

د مرکــــزي کمېټـــي دوطــــن ګونــــد فعـــال غـــړئ غـــلام مجدد ((ســليمان لایــق)) دسرپرســت پــه توګــه وټاکــه ،دهغــه ټـاکني څـو سـاعته دوام ونـه کـړ، لـه جمهـوري ریاسـت څخـه دکــور پــر لــور دنجیــب پــه مخکنــي مــوټر کــي ســپور ســو او دوســتمي ملېشــو لــه لــوري دهغــه را تاکېــدل دا پــه ډاګــه کــړل ،چي هغه ((لایق)) سمبولیک مشر دی .

پــه همــدې شــپه ددې پېښــي څخــه مخکــي نومــوړي ((لایــق)) خپـل دپخـواني او ټینـګ ملګـري نجیـب پـه اړونـد پـه ډېـري سـاده ګـی دملـي رادیـو لـه لاري هغـه لـه انصـاف څخـه لیـري خبـري وکړې ،چي په ګوندي یارانه کي نه ورته ښایېدلي .

دې کړنــو دا ده لــه پــرتم ډک دحماســو او ننګونــو کــور دبې قفله دروازې بې باغوانه باغ په شکل کړ .

## پېښور

د جبــل الســـراج د معاهــدې ترڅنــګ پــه پېښــور کي جهـــادي ګونـــدونو دیـــوه حکومـــت پرسرد جوړېدوســـلا او مشــورې پیــل کــړي وې ،چــي پــه ســاعت کــي بــه یــې بــدلون رامنځتــه کــاوه جمعیــت اســلامي افغانســتان اســرار کــاوه ،چــي کابــل نورزمــوږ پــه لاس کــي دی .حکومــت جوړولوتــه اړتیــا نســته هــورې ټولــه پرهمــدې حکومــت را غونډ پــدلای سو.

ددې خبروترڅنګ محمد یو نس قانوني دجمعیت اسلامي په استازي توب دهمدې جهادي ډلو په غونډه کي موجود اودخپل ګونداستازي توب یې کاوه حزب اسلامي خپل مرستیال او دسیاسي کمېسیون ریس قطب الدین هلال جهادي شورى ته داستازي په توګه معرفي کړي و،پخپله یې مشرلوګرته دکابل دفتحې په نیت تللی،چي داوخت یې دکابل ولایت جنوب ولسوالي ((چهاراسیاب))دقو مندان ابوبکر په توسط نیوله سوې وه .

همداو،چي دملګروملتونوداستازي بېننسیوان هم په دې ورځو کي یوه پښنه ترکابله اوبله تر پېښوره سوه ، دنومړي دمنډو تړو په پایلو کي پردې توافق وسو،چي کابل به مجاهدینو ته ور کول کېږي .

ددې پروسې په پیلامه سره همدا وو ،چي ددوو میاشتو لپاره

- حضرت صبغة الله مجددي جمهورریس وټاکل سو.
- تردوومیاشتووروسته دڅلورو میاشتو لپاره برهان الدین رباني دجمهوریس په توګه تعینیږي
- ددې دوارودورولمړی وزیر به دحزب اسلامي یوغړی وي.

په درنښت

*پاته په دوهم ټوکي*



د جاپان دملي تلویزین سره دمرکې یوه ګوښه
((توکیو))جاپان ۱۲ ،۲ ،۲۰۰۷میلادي کال



له پوهنتونه دفراغت مراسم

# دلیکوال لنډه پېژندنه

نوم :.حاجي نوراحمد (قران مل)

دپلارنوم :حاجي عبدالحمید (کاکړ)

اصلي مینه :کندهار ښار ځلرمه ناحیه (بامیزو کوڅه)

اوسنۍ مېنه:کندهارښار لسمه ناحیه (کارته معلمین)

زده کړي :دمتوسطودیني ،اداري،تدریسي زده کړو ترڅنګ په ۱۳۸۲ لمریز کال کې دکندهاردعالي دارالمعلمین داجتماعیاتو له څانګه فارغ

تر ۹ کاله ځنډ وروسته په ۱۳۹۰ لمریز کال دکندهار پوهنتون ته شامل اوپه ۱۳۹۳ــــ ۱۳۹۴ لمریز کال کندهارپوهنتون دتعلیم اوتربیې پوهنځی څخه فارغ دی.

خصوصوي زده کړي :

دیني لمړنۍ او منځنۍ زده کړي: دکلي او محل له ملا امامانو څخه

داداري او مشرتوب اړوند: داداري اصلاحاتواوملکي خدمتونو خپلواک کمیسیون((کابل))

عملیاني پلان ،پالیسي اوستراتېژي جوړونه ((دجاپان هیواد اوکیناوا ښار اوپیک سنټر))

کوچنیانو رواني او دښوونځیو داداري نظام سمبالښت ((پاکستان پېښور اریک سنټر))

## چاپ سوي اثار

- ادبي ډېوه :: نثري تحقيقي ليکنه
- زماغوښتني :: نثري ټوټه ييزه ليکنه
- اياغريبک پېژني ؟ :: نثري تحقيقي ليکنه
- ښکۍ :: نثري تحقيقي ليکنه
- دغريبک خزانه :: نثري تحقيقي ليکنه
- داوښکو بهير :: آزاد اومقيدوشعرونه
- خطاب :: مقيد شعرونه
- ديادونو ځولۍ :: آزاد اومقيد شعرونه
- خطوط واقلام :: ترتيب ،سمون اوسريزه
- پښتولنډۍ اوغاړي :: ترتيب ،سمون اوسريزه
- ستوري ستوري يادونه :: ترتيب ،سمون اوسريزه
- تاند يادونه :: ترتيب ،سمون اوسريزه
- زرورانګه مجله :: پرله پسې شپږ ګڼې
- دپاړکوډولۍ :: ترتيب ،سمون اوسريزه
- لمرين کلۍ :: يون ليک
- ريښتونۍ استازۍ :: درسول الله (ص)ټولنيز ژوند
- مناجاتونه :: مردفه قافيه شعري ټولګه
- انسان داسلام په دايره کښې :: ديني ليکنه
- افغانستان سياست په درشل کي :: تاريخي ليکنه
- پرتليزي رسنۍ :: تحقيقي ليکنه
- تسليحاتي مسابقه همدا اثر

## ناچاپ اثار

- زوړښار
- قراني اداره
- لیډر شیپ ((مشرتوب)) داسلام له زاویي څخه
- داسیا تاریخي زړه
- داسلام روښانه لرلید ژباړه
- ښوونیز انعکاسات Teaching reflictions
- هنر باز شاعر ((عبیدالله ځګرخون))
- تحقیقي ۱۰ مقالې
- تحقیقي ۱۰ مقالې
- درحمت کور ((سفرنامه)) دسعودي عربستان یون لیک
- افشاري موزیم ((څېړنه))
- دغالب په دېره کې هندته دوهم ځل سفر((اوله غالب اکاډمۍ څخه لیدنه))